مکمل و مدلل
د قرآن او حدیثو په رڼا کښې
د مسجدونو مسئلې
(له عیدګاه سره)
مؤلف
مولانا رفعت قاسمي
مدرس دار العلوم دیوبند

# دکتاب ځانګړتیاوې :-

دکتاب نوم : دمسجدونو مسئلې

مؤلف : مولانا رفعت "قاسمي"

پښتو کوونکی : عبدالله ګل ریان

دچاپ کال : ۱۳۸۵ هـ ش

دچاپ شمیر : ۱۰۰۰ توکه

دوهم چاپ : ۲۰۰ توکه

کمپوز اوډیزائن : نورالقرآن علمي اداره

کمپوزر : عبدالله "عزام"

اصلاح اوسمون : ابو خالد مولوي عبدالاحد

ډیزائنر : محمدالله "وفا"

خپرونکی : محمد ساجد دګرځنده تلیفون شمیره (۰۳۳۳-۷۸۲۵۴۸۴)


## فهرست

## فهرست

سرلیک　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　مخ







سرلیک　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　　مخ

سرلیک





سرلیک مخ

| سرليک | مخ |
| --- | --- |
| دمسجد د ونو دميوي حكم | ۱۰۵ |
| دمسجد په دوهم پوړ كښې دمسافرو | ۱۰۵ |
| مسجد ته دننوتلو د دعاء ويلو ځاى | ۱۰۶ |
| مسجد ته د تلو راتلو په وخت كښې سلام | ۱۰۶ |
| په مسجد كښې تبليغي نصاب په ماښك | ۱۰۷ |
| په مسجد كښې دمرسته كوونكي دنوم | ۱۰۸ |
| په اعلان سره فيس (اجوره) اخستل | ۱۰۸ |
| دمسجد په ماښك كښې دچندې (مرستي) | ۱۰۹ |
| په مسجد كښې د ورك شوي شي اعلان | ۱۰۹ |
| كه دمسجد دماښك لاوډ سپيكرونه په منارو | ۱۱۰ |
| دمسجد دننه په ماښك كښې اذان كول | ۱۱۱ |
| په ډيرو مسجدونو كښې لاوډ سپيكر | ۱۱۱ |
| له اذان څخه پرته دنورو شيانو لپاره | ۱۱۱ |
| په مسجد كښې د وعظ دفتي | ۱۱۲ |
| په مسجد كې چوكۍ اېښودل | ۱۱۲ |
| دمسجد له پيسو دماښك دبيترى | ۱۱۳ |
| په مسجد كښې لاس پاک (توليا) | ۱۱۳ |
| په مسجد كښې تغداني | ۱۱۴ |
| دروژي په مياشت كښې دمسجد تزئين | ۱۱۴ |
| دخداى ﷻ په دربار كښې ددنيا كارونه | ۱۱۴ |
| له دنيائي وينا څخه ځان ساتل | ۱۱۵ |
| درسول الله ﷺ وراند وينه | ۱۱۵ |
| په مسجد كښې دنيوي خبري كول | ۱۱۷ |
| په مسجد كښې كښيناستل | ۱۱۸ |
| په مسجد كښې دنعت شريف ويل | ۱۱۸ |
| په مسجد كښې پيرل او پلورل | ۱۱۹ |
| په مسجد كښې دكعبې عكس لگول | ۱۲۰ |
| دنيوي مسجد عكس ته مخ گرزول | ۱۲۰ |
| په مسجد كښې دانخور لرونكى | ۱۲۱ |





| سرليک | مخ |
| --- | --- |
| په مسجد كښې دمړه شوي شخص لپاره | ۱۲۱ |
| دپيش لمې (سحري) لپاره | ۱۲۲ |
| دمسجد په بام دښكار لپاره | ۱۲۲ |
| مسجد ته دننه تللو سوگند كول | ۱۲۲ |
| دمسجد په ديوال كښې د دوكان | ۱۲۳ |
| له مسجد څخه د وتلو لپاره | ۱۲۳ |
| مسجد ته په رسيدلو كښيناستل | ۱۲۳ |
| دتحيحة المسجد حكم | ۱۲۵ |
| په مسجد كښې دجنازې لمونځ | ۱۲۶ |
| جنازه بهر خو امام او مقتديان | ۱۲۶ |
| دمسجد په ويرانه كور جوړول | ۱۲۷ |
| دمسجد بيمه كول | ۱۲۷ |
| دمسجد له خادم سره مراعات كول | ۱۲۸ |
| دمسجد دخادم د اولاد او د وراثت حق | ۱۲۸ |
| حديث شريف ليكل او په مسجد | ۱۲۹ |
| دمسجد په ديوال اعلان | ۱۲۹ |
| په مسجد كښې اعلان لرونكي | ۱۳۰ |
| كه له غير مسلم سره دمسجد امانت | ۱۳۱ |
| كه له مسجد څخه غلا وشوه | ۱۳۱ |
| كه دمسجد امانت شيان غلا كړل شي | ۱۳۲ |
| له مسجد څخه بهر دمسجد دشتمنې لگښت | ۱۳۲ |
| دفاحشې شتمنې په مسجد كښې | ۱۳۳ |
| معاش اخستل او په مسجد كښې تدريس | ۱۳۳ |
| دمسجد په يوه برخه كښې درس ويل | ۱۳۳ |
| دمسجد داړوند قرآن كريم استعمال | ۱۳۴ |
| دمسجد قرآن كريم زده كوونكوته وركول | ۱۳۵ |
| په مسجد كښې له اجازې پرته دولتې | ۱۳۶ |
| دمسجد عوايد داوقافو له اداري | ۱۳۶ |
| په مسجد كې دخاورو تيل لگول | ۱۳۷ |

سرلیک | مخ







سرلیک | مخ

سرلیک ..... مخ





فهرست

سرلیک ..... مخ

## فهرست

سرلیک — مخ



# دنورالقرآن اداري یادښت

## محترمومسلمانوورڼو! اسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

دمسجدونو مسئلې دوهم ځل تصحیح شواودا دي اوس ددوهم ځل لپاره چاپ شو اوتاسوته زیری درکوو چې دمولنارفعت قاسمي صاحب اتلس کتابونه زموږ دنورالقرآن اداري دکمپوز اوترجمې ترپړاو تیرشو اوس ئي له چاپه وروسته چې ځینې غلطي پکښي پاته وي دادي اوس ددوهم ځل لپاره له چاپه وروسته تصحیح کیږي چې انشاء الله تاسوئي ښه په اطمنان کتلای شئ اوهمداسې داټول کتابونه ترتصحیح لاندی دی چې ژربه انشاء الله ټول کتابونه همداسې تصحیح شي.

چې ددې کتابونو دچاپ لړۍ دمکتبه رشيديه سرکي روډ په واک کي ده اوکه دکومې بلې اداري لخواچاپیږي هغه زموږ د داري لخوانه بلکه شایدزموږ دترجمې نقل به وي.

**دنورالقران اداري خادم**

**ابوخالدمولوی عبدالاحد «مجروح»**

**ضروري يادونه:**

يواځي لوي خداى ﷻ هغه ذات دى چي ، ټول كارونه ئي په پوره معنى بشپړ او مكمل دي خوانسان هغه ناقص او بي توانه موجود دى چي هيڅ يو كارئي هم بي نمګړتيا نه وي.

ګرانو لوستونكو ! كه تاسو ته دليكني . تصحيح . چاپي . جلد سازي او دارنګه په هره برخه كي كومه غلطي په نظر درغله دمهرباني او بشري تقاضا له مخي يي موږ ته زموږ په نمبر يا ادرس خبر راكړي. تر څو په دوهم چاپ كښي ئي اصلاح كړو. او تاسو ته لوى خداى ﷻ اجر او ثواب دركړي.

د مكتبه رشيديه سركي روډ كوئټه لخوا
فون: 081-266223
موبائيل: 0333-7825484

# دليكوال سريزه

نحمده ونصلي على رسوله الكريم :

په ديني حكمونو او مسئلو كښي ، داحقر ډير كتابونه خپاره شوي دي. هغه په خاص او عامو خلګو كښي مقبول هم دي او س الحمد لله ، دمؤلف شپاړسم كتاب (دمسجدونو او عيدګاه مسئلي ) ستاسو په وړاندي دي. په دي كتاب كي دمسجدونو او عيدګاه دا ړوند حكمونو او مسئلو دراټولولو په هكله هڅه شوي ده. په هغوئ كښي لكه: قبضه شوي ځمكي ، دهديه ځمكي ، دوران شويو مسجدونو دځمكو احكام راغلي دي دمسجدونو نار وا قبضه ، دهغوئ ورانول ، هغوئ ته زيان رسول يا دمسجد په ځمكه دنورو شيانو جوړول روا دي او كه نه ؟

دمسجدونو متولي ، مشر او غړي څوك كيدلاي شي او دهغوئ شرعي اختيارات څه دي ؟

دمسجدونو دامامانو او خطيبانو حقوق او فرائض څه دي ؟

لنډه داچي دمسجدونو اوعيدګاوو په هكله مي نژدي يو زر مسئلي ، دخداى ﷻ په فضل ، ددیوبند ددارالعلوم په بركت او دهمدي مركز داستاذانو او مفتيانو په پاملرنه راټولي كړي دي .الله ﷻ دي دډير وخت لپاره دهغوى دمهرباني سيوري له ښي روغتياسره ولري . الله ﷻ دي داكتاب هم دنورو په څير مقبول وګرځوي ترڅوراته داخرت توښه وي. الله ﷻ دي په راتلونكي كي هم دكار او خدمت توفيق راكړي (امين)

دلوستونكو له تېنګاره سره ،سره دكتاب ليكل او چاپ كول ، زما دمشر ورور محمد اسعد صديقي دناڅاپي مړيني له امله وځنډيدل .نوموړي د١٤٢١ كال دربيع الاول په نهمه نيټه (١٣ جون ٢٠٠٠ ) دزړه ددريدلو له امله وفات شو. له لوستونكو څخه مرحوم ورور ته ددعا په هيله يم.

دعاغوښتونكي: محمد رفعت قاسمي

ددیوبند ددارلعلوم دتدریس خادم
د۱۴۲۱ ه ق کال دشوال المکرم پنځمه نیټه
دجنوري لومړي ورځ ۲۰۰۱ م

ددیوبندددارالعلوم دسترمحدث،فقیه النفس حضرت مولانا
مفتي سعیداحمد مدظله پالنپوري

## تقریظ

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد!

مساجد دالله تعالی کورونه دي یعني محترم ځایونه دي ځکه هلته دالله تعالی عبادت کیږي . له همدي ځایه دلاربښووني انوار پیداکیږي اودکلیو دهستوګنو زړونو ته خپریږي. دنور دسورة په ۳۵،۳۸ ایتونو کښي، په دي هکله تفصیل راغلي دي.

مسجدونه دالله تعالی شعائر دي ، یعني دالله تعالی ددین غوره بیلګي دي .له مسجدونو څخه دملت پیژندنه کیږي دهغوئ درناوي اوادب ساتل په هر مسلمان لازم دي.

دمسجدونو ادب څه دي ؟ دهغوئ ادب څرنګه وساتل شي ؟ دایوه پراخه موضوع ده په قران کریم ، حدیث اوفقهي په کتابونو کښي دمسجدونو بي شمیره احکام بیان شوي دي په کتابونو کي راغلي دي . په عربي او اردو ژبو ځیني رسالي هم پکښي لیکل شوي دي. خوزموږ محترم دوست جناب مولانا قاري محمد رفعت قاسمي صاحب په قران کریم ،دحدیثونو په کتابونو ،فقه اوفتاواوو کښي ځیړنه کړي اوستره ذخیره یي راټوله کړي ده. لکه څرنګه چي دهغه طریقه ده چي دهري خبري حواله لیکي ، په دي کتاب کي یي هم داهوډ کړي دي چي کومه خبره پکښي له حوالي پرته نه وي.



ماچي کله دکتاب پرمظامینوباندی نظرواچاوو خوشحاله سوم چي ټول ضروري مسائل پکښي راغلي دي.

الله تعالی دي داکتاب قبول کړي او دنوموړي دنورو کتابونو په څیر دي ګټور وګرځوي (امین ) ددیوبند ددارالعلوم دخادم سعید احمد (عفاالله ) پالنپوري لیکنه.

ددیوبند ددارلعلوم دمفتي ،ددارالعلوم دفتاواوو مرتب ، حضرت مولانا
مفتي محمدظفیرالدین صاحب دامت برکاتهم

## تصدیق

الحمدلله رب العالمین والصلوة والسلام علی سیدالمرسلین وعلی وصحبه اجمعین _

امابعد!

مولانا قاري محمدرفعت قاسمي صاحب ، ددیوبند ددارالعلوم مدرس په مختلفو مسئلو کښي په لس ګونو کتابونه ترتیب کړي اوچاپ کړي دي . ټول کتابونه یي په خاصو اوعام خلګو کښي مقبول دي . دواړو طبقو ورڅخه ګټه اخیستي ده .

دامهال دنوموړي یو نوي کتاب د(مسائل مسجد) په نوم لیکل شوي دي . په لیدلو یي زړه خوشحاله کیږي . دډیرو مسئلو دراټولو څخه یي پکښي کړي ده او تر ډیره حده پکښي بریالي دي . دیادولو وړخبره داده چي دټولو هغو مشهورو فتاواوو څخه یي ګټه اخیستي ده چي دباوري مفتیانوله لوري چاپ شوي دي . په فتاواوو کښي چي دمسجدونو په هکله څومره

مسائل راغلي دي ، نژدي ټولي يي راټولي کړي دي . لوستونکوته به
پکښې خورا اساني وي .
ماپه مختلفو ځايونو کښې دامسئلي وکتلي ،ماشاءالله ډيرزيار يي
پکښې ګاللي دي ، الله تعالی دي داخدمت قبول اوداخرت توښه دي ورته
وګرځوي . هيله ده متدين مسلمانان داکتاب له ځان سره ولري ترڅو يي
داړتيا په وخت کي په درد وخوري . زه له خپله لوري ،نوموړي ته مبارکي
وايم . خدای تعالی دي وکړي څو همدالړۍ همداسي جاري وي .

ددعاغوښتونکي ،محمدظفيرالدين غفرله
دديوبند ددارالعلوم مفتي
۱۳،۱۴۲۱،۱۲ هـ ق



دديوبند ددارالعلوم دمفتي ، دحضرت مفتي عزيزالرحمن (رح)
دلمسي ،حضرت مولاناکفيل الرحمن (نشاط) . عثماني صاحب
:

## ارشاد

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله ، دمولانا محمدرفعت صاحب چي دديوبند ددارالعلوم استاذ
دي ، په مختلفو موضوعاتو کښې يي پنځلس کتابونه چاپ شوي دي . په
هره موضوع کښې يي مسائل داسي راغونډ کړي دي چي لوستونکي ته
دااړتيا نشته چي ډير کتابونه وګوري يا ډير وخت مصرف کړي بلکي په
څو دقيقو کښې کولاي شي خپل مطلوبه مسئله وموي اوځان ورباندي
ډاډه کړي . په دي ترکتلو لاندي کتاب کښې ، دمسجدونواوعيدګاه په
هکله نژدي ټولي مسئلي راغلي دي . اوپه ښه سليقه يي ضروري مسائل
راټول کړي دي . مااحقر دنوموړي مرتب په غوښتنه دبشپړ کتاب مسوده
وکتله اوګټه مي تري ترلاسه کړه .اوس ترمطالعي وروسته په ډير باور او
ډاډ سره پوهيږم چي انشاء الله دنومړي همداهڅه به ، خاص اوعام خلګو
ته خوراګټوره وي . په دي ترڅ کښې يي دمسجدونو دعظمت اواهميت په
هکله هم ډير معلومات ترلاسه کيدلاي شي .
زما دعاده چي الله ﷻ دي دکتاب ترتيب کوونکي داجر په ورکړه ونازوي
اوداتأليف دي هم دنورو تأليفاتو په خير مقبول وګرځوي . امين يارب
العالمين

کفيل الرحمن نشاط عثماني ۱۲ ذی الحجة ۱۴۲۱ ه ق

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَىٰ أُولَٰئِكَ أَنْ يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ

دتفسيرلنډيز: دمسجدونو ودانول دهغو خلكو كار دي چې په الله تعالى اوقيامت په ورځ ايمان لري. دلمونځونو پابندي كوي او زكات وركوي، پرته له الله تعالى له بل چاڅخه نه ويريږي نواميد دي همداخلګ په خپلو مقصدونو كې بريالي شي.

مطلب دادي ، هغه ځوك مسجدونه ودانوي چې په عقيده اوعمل كښې دالهي احكامو تابعيت لري ، په اخرت ايمان لري دلمونځواوزكوة پابندي لري. له الله تعالى څخه پرته له چاويره نه لري.

دلته په الله تعالى اوقيامت په ورځ دايمان يادونه شوي ده خو په رسول الله ﷺ باندې دايمان يادونه شوي نه ده. په اصل كې كه ځوك په الله تعالى ايمان لري ، هغه بله لاره نه لري چې په رسول باندې يې باور نه وي. كه دالله تعالى ايمان له زړه منل كيږي نويه فطري ډول په الله تعالى باندې دايمان سره په رسول ﷺ باندې ايمان شامل دي.

رسول الله ﷺ يوه ورځ له صحابه وو څخه وپوښتل: دا تاسو پوهيږئ ، په الله تعالى باندې ايمان درلودل څه شي دي؟ "صحابه وو عرض وكړ: الله تعالى اورسول ﷺ ورباندې ښه پوهيږي.

رسول الله ﷺ وفرمايل: « په الله تعالى ايمان دادي چې انسان داشهادت وركړي چې پرته له الله تعالى بل ځوك دعبادت وړنه دي اوداچې محمد ﷺ دالله تعالى رسول دي.»

ددې مبارك حديث څخه ښكاره كيږي چې په رسول باندې ايمان ، په الله تعالى باندې په ايمان كښې شامل دي. (مظهري دصحيحين ؤ په حواله).



# ددې ايت ځيني اړوند مسئلې

داچې دمسجدونو دودانول په اړوند اياتونو كښې ښودل شوي دي چې داكار مشرك اوكافر كولاي نشي بلكي دادنيك مسلمان كار دي. مطلب پكښې دمسجدونو سرپرستي اوانتظام مسئوليت دي.

حاصل دادي چې كوم كافر داسلامي وقف متولي ، منتظمه اواداره كوونكي كول روانه دي. ځو كه د در اوديوال يادظاهري جوړښت كار غير مسلم شخص وكړي نو كومه خبره نشته (دمراغي تفسير).

همداشان كه كوم غير مسلم كس داثواب وګڼي ، مسجدونه ودان كړي يا دمسجد دودانولو لپاره مسلمانانو ته مرسته وركړي ، دهغې مرستې منل ته دي صورت رواده چې دبيا لپاره پكښې زيان نه وي ، دقبضې يااحسان اچولو ويره پكښې نه وي. (رد المحتار - شامي ، مراغي) داچې په دې آيت كښې دمسجد ودانول يوازې دصالح مسلمان كار بلل شوي دي. داځرګنده وي چې كوم شخص دمسجد دساتنې ،پاكولو يانورو ضرورياتو خيال ساتي يادعبادت دالله تعالى دذكر، دنبي زده كړې اويادقران دتلاوت لپاره مسجد ته راځي. دده داكړه وړه دهغه دبشپړي ايمانداري شاهدان دي.

امام ترمذي اواما م ابن ماجه دابوسعيد خدري رضي الله عنه په روايت رانقل كړي دي چې: (رسول الله ﷺ فرمايي: كه تاسو ځوك وليدچې هغه مسجد ته دتللو پابند دي. دهغه دايمان شاهدي وواياست. ځكه الله تعالى فرمايي (إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ) دصحيحن وو په حديث كښې دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ((هغه ځوك چې سهار اوبيګاه مسجد ته راځي. الله تعالى ورته دجنت يوه درجه برابره وي.))

سلمان فارسي ﵁ روایت کوي چي : رسول الله ﷺ فرمایي « څوك چي مسجد ته راځي ، هغه دالله تعالی زیارت کوونکي میلمه دي ، په کورني داحق دي چي دمیلمه عزت وساتي » (مظهري دطبراني ، ابن جریر اوبیهقي په حواله ) .

دقران مفسر قاضي ثناء الله پاني پتي (رح ) وایي دمسجد په ودانولو کښې داهم راځي چي مسجد دهغه څه پاك کړي دکوموليپاره چي جوړشوي نه دي لکه ، پیرل پلورل ، دنیایي خبري ، دورك شوي شي پلټنه ، ددنیا شیانوله خلګو څخه غوښتنه . عبث اشعار ویل ، جګړه ، شروشور ، اونور....

(مظهري معارف القران څلورم ټوک ۳۳۱)

## دمسجدونو اهمیت اوعظمت

داچي په لمانځه پوري ستر ، ستر مقصدونه تړلي دي دهغوئ دتحصیل اوبشپړتیا لپاره دالازمه ده چي دلمانځه لپاره اجتماعي نظام هم وي . په اسلامي شریعت کښې دانظام دمسجد اوجماعت په بڼه جوړشوي دی . که خ ك په غور سره وګوري، پوهیږي چي دامت ددیني زندګي په جوړښت،تنظیم اوتربیت کښې مسجد اوجماعت څومره دخیل دي . له همدي امله رسول الله ﷺ له یوه لوري په جماعت سره په لمونځ کولو خورا تاکید کړي دي اوپه پرینبودلو یي سخته ناخوښي ښودلي ده . له بلي خوا یي دمسجدونو په اهمیت تاکید کړي دي، چي تر کعبة الله وروسته یي مسجد چي هغه هم دخدای ﷻ کور بلل کیږي دیني مرکز ښودلی دي دالله ﷻ په نږدي دمسجد عظمت اومحبوبیت اودمسجد برکتونه ښودلي دي . رسول الله ﷺ امت ترغیب اوتشویق کړی دي چي که صورتا کله هم چیري وي دزړه او روح توجه مسجد ته واړوی . همدارازیي دمسجدونو دحقوقو اوادابو ښودنه هم کړي ده



ابو هریرة ﵁ وایي : (قال رسول الله ﷺ احب البلاد الی الله مساجدها وابغض البلاد الی الله اسواقها )(رواه مسلم )

(رسول الله ﷺ وفرمایل : تر ښارونو (اوکلیو) الله ﷻ ته مسجدونه ګران دي او ترټولو (ښارونه ) ورته مبغوض (غضب کړی شوی ) بازارونه دي . )

**تشریح** : دانسان دژوند دوه اړخونه دي : لومړی ملکوتي اوروحاني چي نوراني اولطیف اړخ دي اوبل مادي اوحیواني لوري چي تیاره اوکثیف اړخ دي .

دروحاني اړخ تقاضا دالله ﷻ دعبادت اوذکر په خیر سپیڅلی دندي اوکارونه دي . په همدی دا اړخ بشپړ کیږي اوبیا انسان دخدای ﷻ دخاص رحمت اومحبت وړګرځی .

دا همداسي ځانګړو اوسپیڅلو کړو وړو مرکزونه ، مسجدونه دي . هغوئ چي په ذکر اوعبادت ودان وي . له همدي وجهي ورته « بیت الله» له ویلو سره څه مناسبت لري .

له همدي امله الله ﷻ ته تر ښارونو اوکلیو ګران اوخوښ مسجدونه دي . بازارونه دخپلي موضوع په لحاظ،دانسانانو دمادي اوحیواني غوښتنو دپوره کولو مرکزونه دي . هلته تلل انسان له خدای ﷻ څخه غافل کوي . دهغه ځای فضا دغفلت ، منکراتو اوګناهونو له امله تیاره اومکدره وي . له همدي امله الله ﷻ تر نورو ودانیو همدا ځایونه مبغوض اوناخوښه دي . ددي مبارك حدیث روح اومنشأ داده چي دایمان څښتنان له مسجدونو سره زیاتي اړیکي ساتي اوبازارونو ته یوازي دضرورتونو دپوره کولو لپاره ځي، زړه ورسره نه نږدي کوي اوله درواغو خطا ایستلواوبیدیني څخه پکښي ځان ساتي.له همدي پابندیو سره دبازار تللو اجازه شته .آن

رسول الله ﷺ دداسي سوداګرانو لپاره دجنت زيري کړي دي چي له امانت اوديانت سره تجارت کوي.

دا داسي دي لکه له بيت الخلاء سره، چي خورا ناولی ځای دی انسان تعلق ساتي ځکه انساني اړتيا لري، که هلته په تللوراتللو کښي هم ديني احکام مراعات شي ورته دثواب هيله کيږي.

(معارف الحديث دريم ټوک ۱۷۱ مخ، حجة الله البالغه ۳۰۲ مخ اومظاهر حق لومړی ټوک ۵۹۵)

## چيري چي دمسجداړتياوي هلته يي دودانولو اجر

مسجد دخدای ﷻ کور او داسلام ديوي ستري فريضي د اداء کولو مرکز دي. دلمانځه لپاره دټولي ځمکي مخ دسجد ځای دي خو اجر اوثواب ،حکمت اومصلحت يي په مسجد کښي په جماعت سره په اداء کولو کښي ډيردي .له همدي امله رسول الله ﷺ دمسجد دودانولو اجر اوثواب اودهغه اداب اوشرائط په تفصيل سره بيان کړي دي.

دليکوال داخبره (چيري چي دمسجد اړتيا وي) يوه مهم حقيقت ته اشاره ده.دمسجد دودانولو اجر خو زيات دي اما که څوک له بل مسجد سره خواکښي مسجد ودانوي داشوق يي بي محله مصرف دي . دمسجد ودانول هلته غوره دي چي ورته اړتيا وي).

دعمر ؓ دخلافت په موده کښي چي به کومي سيمي فتح شوي اودمسجد دودانولو اړتيا به محسوس شوه. عمر ؓ به داسي حکم صادرکاوو :

« په يوه ښار کښي داسي دوه مسجدونه مه ودانوي چي يوبل ته زيان ورسوي »

(دکشاف تفسير، لومړی توک ۱۰۸ مخ ،دمشکوة شرح مرقاة لومړی توک ۴۵۹ ).

له عثمان ؓ څخه روايت دی وايي: { سمعت رسول الله ﷺ من بني مسجدايبتغي به وجه الله ، بنى الله له بيتا فى الجنة ) (رواه البخاري ومسلم ).



( رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي مسجد ودان کړي،په هغه کښي يوازي دالله ﷻ رضا وغواړي ،الله ﷻ به ورته په جنت کښي (ښکلي ) مانۍ جوړه کړي ).

علامه طيبي وايي : په دي حديث شريف کښي بيتاً په کلمه کښي تنوين دزياتوالي اوتعظيم لپاره دي .

(مرقاة شرح مشکوة لومړی ټوک ۴۴۹ مخ )

ابي ذر ؓ وايي :( قال رسول الله ﷺ من بنى لله مسجدا قدر مفحص قطاة بني الله له بيتا فى الجنة ) - ( رواه البزار واللفظ له والطبراني فى الصغير ورجاله ثقات وابن حبان فى صحيحه )

(الترغيب ومجموع الذوائد ۲ټوک ۷مخ وتخريج العراقى على الاحيا۱ ټوک مخ ۱۴۵ )

(له ابوذر ؓ څخه روايت دي وايي: ( رسول الله ﷺ فرمايي : که څوك دخدای ﷻ درضا لپاره دمفحص قطاة (دكرك دځالي ) په اندازه مسجد ودان کړي.الله تعالى به ورته په جنت کښي ښکلي مانۍ جوړه کړي. )

عمر ابن الخطاب ؓ وايي: (سمعت رسول الله ﷺ يقول من بنى لله مسجدا يذكر فيه ، بني الله له بيتا فى الجنة- (رواه ابن ماجة وابن حبان في صحيحه)

( له رسول الله ﷺ څخه مي واوريدل ويل يي که څوك دالله ﷻ لپاره مسجد جوړ کړي چي پکښي دالله ﷻ ذکر (عبادت) کيږي ،الله ﷻ به ورته په جنت کښي (ښکلي ) مانۍ جوړه کړي .

**تشريح** : څوك چي الله ﷻ ته کور (مسجد) جوړ کړي الله ﷻ به هغه ته کور جوړ کړي . څرګنده ده چي هريو يي له خپل حال سره سم جوړه وي .بنده به يي دخپل وس برابر جوړه وي .او احکم الحاکمين ذات به يي دخپل شان برابر جوړ وي .

داحمد په مسند کښې یوروایت افضل منه (ترهغه غوره) اوپه بل روایت
کښې اوسع منه (ترهغه پراخ) الفاظ راغلي دي
(الترغیب، ومجمع الزوائد ۲ ټوک ۸،۷ مخونه)
نو په دي کښې دشك ځای نه پاته کیږي چي دهر عمل ثواب لس گونه
ورکول کیږي . دیوه مسجدبدل به لس مانۍ څرنگه نه وي .
دمفحص القطاة له اندازي څخه مطلب مبالغه ده . یعني دخورا واړه مسجد
په جوړولو کښې هم ورته اجر اوثواب رسیږي . خو ددي حقیر په خیال
کښې داسي راځي چي ددي خبري مصداق دادي دیوه مسجدپه ودانولو
کښې ډیر کسان گډون وکړي اوځینې بی وزله خلگ په خوراکمه اندازه
پکښې مرسته ولري چي دهمدي کمي برخي دودانولو معادل وي . معنی
داچي که هرڅومره مرسته پکښې وکړي داجر اوثواب مستحق دي .
دابن ماجه اوابن خزیمه په روایتونو کښې دمفحص قطاة اواصغر ) الفاظ
راغلي دي . یعني دکرك دهگۍ داچولو دځاي په اندازه یاترهغه هم وړوکي
دعمر رضی دحکم له روایت څخه څرگندیږي چي مسجد دي هلته ودانیږي
چیري چي ورته اړتیاوي
ابی هریرة رضی وایي : (رسول الله ﷺ وویل : ان مما یلحق المؤمن من عمله
وحسناته بعدموته علماًعلمه ونشره او ولداً صالحاً ترکه اومصحفاً ورثه
اومسجداً بناه اوبیتاً لابن السبیل بناه اونهراً اجراه اوصدقة اخرجها من
ماله فی صحته وحیاته تلحقه من بعد موته .
(رواه ابن ماجه باسناد حسن واللفظ له وابن خزیمة فی صحیحه والبیهقي)
ژباړه : (رسول الله ﷺ وویل : هغه اعمال چي ثواب یي دانسان ترمړیني
وروسته پاته وي، په هغوئ کښې علم دي . چي نورو ته یي ښیي اوخپروي
یي . یا ورڅخه نیك اولاد پاته شي . یا ﷻ ( چي دخپلوانو او نورو خلگو



دتلاوت لپاره تري پاته شي) یا یي مسجدودان کړي وي. یا یي دمسافرینو
لپاره مسافر خانه ودانه کړي وي . یا یي کوم نهر کندلي وي . یاپه خپله له
خپل مال څخه صدقه ورکړي . ددي ټولو شیانو ثواب یي ترمرگ وروسته
ورته رسیږي .)
تشریح : درسول الله ﷺ په ډیرو حدیثونو کښې،ډیرداسي اعمال ښودل
شوي دي چي دانسان ترمړینه وروسته یي ثواب جاري وي. دهمدي
حدیثونوله ټولگی څخه همداسي اعمال ځینو علماوو لس اوځینو
څوارلس اوځینو بیا تر دي زیات اوکم ښودلي دي . خوربښتیا خبره داده
چي دداسي عملونو محدودلول ستو نزمنه خبره ده . له حدیثونو څخه هم
دداسي اعمالو اندازه نه ښکاري . و ان مما یلحق ، له من څخه داسي
ښکاري چي له نورو عملو څخه داهم دي . دا اعمال (( جاریه صدقه )) بلل
کیږي . اوهغه اعمال بلل کیږي چي گټه یي تر ډیره وخته خلگو ته رسیږي .
(الترغیب مخ ۳۸۴ - ۳۸۷ لومړی ټوک. معارف الحدیث ۳ ټوک ۱۸۱ مخ ،نسائي
شریف لومړی ټوک ۱۱۲ مخ ،مسلم لومړی ټوک ۲۰۱ مخ ،ابن ماجه لومړی ټوک ۵۴
مخ ،مظاهر حق لومړی ټوک ۵۹۵ مخ )

## دمسجدونو قدرتي نظام

دجامع مسجد مرتبه څرگنده ده ، په اونۍ کښې یوځل زیات شمیر کسان
په خپل غولي راغونډوي . دکلي په مسجد کښې پنځه وخته دمحلي
دینداره خلگ په مسجد کښې نوراني کیږي . دکلي په مسجد کښې چي
دجماعت اهتمام کیږي ، هغسي دلاروپه مسجدونو کښې نه کیږي .
که په غور سره وکتل شي . په ټولنه التزام اودهغي حیثیت هم یوه ستره
مرتبه لري . دالله ﷻ حکمت دي چي په فرض لمونځونو کښې ، اجتماع
جوړیږي اوتیت پر ك خلگ دپیو ستون څرگندونه کوي . په قران کریم

کښې چې دزړونو دتألیف (نژدیوالي) داحسان یادونه شوي ده، هغه شپه
اوورځ هم دلته اعلانیږي، لکه چې ورته مستقل نظام جوړشوی دی، چې
په قدرتي اوفطري ډول ټول مؤمنان دراغونډیدلو هڅه کوي. موږ همدا
نظام د(مسجد نظام) بولو.

دهمدې نظام دلویوالي احساس انساني خلقت له پیل څخه په زړونو کښې
الله ﷻ ایښي دي اودرسول الله ﷺ په واسطه هغه ښه غښتلې شو که غور
وشي په هره محله اوکلي کښې هم دانظام کلك اومضبوطه وي ځکه په
هغه کښې دنیوي اوديني، حسن اومعنوي ډیري ګټې دي.

دانظام چې موږ یې دمسجد نظام بولو خورا تدریجي ترقي پکښې
مراعات شوي ده. داونۍ په ترڅ کښې دکلي خلګ په ورځ کښې پنځه ځله
راټولیږي اولمونځونه کوي. همدا وختونه معلوم دي، څوك ورڅخه
دتخلف جرئت کولای نشي. ترڅوټول یو وخت په عبادت مشغول وي.

دایو حقیقت دی چې په نړۍ کښې داسي څوك پیداکیدلای نشي چې په
یوازي سر کارونه سرته ورسوي. بلکه په دنیایي ژوند کښې مرسته
کوونکي اوحامیانو ته اړ دي. له دوستانو، وروڼو، خیر خواهانو أوبې
شماره ملګرو سره ښه ژوند جوړولاشي.

همداشان دالهی احکامو په سرته رسولوکښې هم شریکانو
اومرستندویانو ته اړتیالري. ترڅو دیوه خدای ﷻ منونکي، دیوه رسول
امتیان دیوه قراني قانون، پیروان، دالله ﷻ په عبادت کښې یوځای سره
راغونډ شي، دیوه هدف لپاره په عاجزي سره خپله بې وزلي څرګنده کړي.
لوي خدای ﷻ ته دخپلو مقصدونو دحصول لپاره دعا او زاري وکړي. په
منظم ډول دشیطان مقابله وکړي. که یو دبل مرسته ونلري، منظم صف



ونلري، ددښمن لښکر ته موقع په لاس ورکوي له ماتي سره یې مخامخ
کوي.

همداتنظیم به خلاص نه وي، له هر اړخه به کلك وي. له ظاهري راټولیدلو
سره، سره به باطني غونډیدل هم وي. دصفونو په سموالي کښې دزړونو
نژدیوالي هم راځي، له ظاهري پاکي څخه باطني هم پیداکیږي. دیوه
اصل ټول پابند اودیوه امیر یا امام ټول تر امرلاندې وي.

اسلام دمسجد په نوم داسي کلك نظام جوړ کړي دي چې مسجد یې
یوخاص کور بللي دي چې نه دچا خاص ملکیت وي اونه هم ځانګړي قبضه
بلکي دالله ﷻ کور یې بولي. په هغه کښې ټول مسلمانان په مساوي ډول
شریك وي. دراغونډیدلو وخت یې معلوم دي ترڅو ټول په همداسي ټولنه
کښې راټول شي. ټول یوځای دامام شاته اوږه په اوږه سره لګیدلي
ودریږي. په ناسته ولاړه کښې دهمدې یوه امام پیروي وکړي. نه ترامام
وړاندې څوك تیټ شي اونه هم قیام اوقعده تري وړاندې وکړي. ټول
یوډول عمل کوي، که امیر وي که فقیر همداسي یې متابعت کوي.
یوځای دعبودیت (بندګي) اظهار کوي. داسي احساس کوي چې ګواکي
الله ﷻ ویني اوکنه داخویې یقین وي چې هغه ذات موږ ویني.

تر اونۍ وروسته، په یوه خاصه ورځ (جمعه) یو ګام اوچت اخلي دکلیو
اومحلو خلګ له پاکي سره له کورونو راوزي، دمسجد په لاره ښکلي
منظره جوړوي، له هر لوري له هره کوره و مسجد ته راځي نسبتا پاك، په
ځیرو کښې وقار څرګند دټول ښار ګوتې یوځای کیږي. لولي، اوري،
تسبیح، تهلیل اوتلاوت کوي...

امام راځي، مؤذن دوهم اذان کوي، دخلګو توجه دامام لورته ګرځي،
امام تلقین اوتبلیغ کوي. اواز یې لوریږي سترګي یې سرې کیږي، زړونه

ورسره غورځي ، په بدنونو لړزه راځي ، الهي خشیت اودالله ﷻ مینه سره
ګډیږي عجیب کیفیت پیداکوي . خطبه ختمیږي ، لمونځ اداکیږي
خوځرنګه ؟
ځرنګه چي یوامام الله اکبر وایي دټول ښار ګوټي مسلمانان ورسره الله اکبر
وايي ، چي یوتن (امام) رکوع ته ځي ټول ورسره رکوع کوي . چي هغه
سجدې ته ځي ټول ورسره سجده کوي. دامیر اوغریب توپیر له منځه ځي
له بله لوري ، غوره والي دادي چي په دي نظام کښي دیوه امام پیروي ده
دلښکر اوپوځ دمشر او امیر داطاعت زده کړه ورکوي ، دیوي قوماندي
دتعمیل تکرار کوي ، په همدي ځانګه کښي په لکونو او کروړونو روپي
داوبو په څیر لګیږي خوبیاهم په پوره یقین اوباور سره کیدلای نشي څو
همداسي نظم وساتلای شي : خودمسجدونو په نظام کښي دامام دپیروي
داشان دي چي هیڅوک تري سر نه غړوي . له لس کلنۍ تر مړیني دهمدي
نظم مشق اوتکرار کوي . کمال دادي چي دکومي ورځي دناغي اورخصتي
نوم نشته (الا ماشاء الله)
ایا تردي ور لوړ نظام هم شته ؟ دنړۍ هیڅ سیاسي نظام دمسجدونو نظام
ته رسیدلای نه شواي .

## دنیا يي اوديني اصلاح

په اونۍ کښي چي داباشکوه عبادت اداکیږي ، هلته دژوند دهري ځانګي
ماهر خلګ ګډون کوي . علماء ، صوفیان ، سوداګران ، بي وزله اوغریب
خلګ اوهغوئ چي له علم څخه کومه برخه نلري .
هریوبل ته دبصیرت اوعبرت په سترګه ګوري ، دالله ﷻ دقدرت نقشه يي
په وړاندي پرته وي. رئیسان اوسوداګران دمسلمانانو اقتصادي حالت ته
توجه کوي ، علمايي علمي اوديني اړخ ګوري . دصوفیانو نظر دزړونو



تزکیي ته اوړي ، بي وزلو ته دزیارګاللوحوصله اوفقیرانو ته د په ځان
دویسا احساس پیداکیږي . ناپوهانو ته په زړه کي دزده کړي شوق اوبي
عمله خلګو ته دعمل جذبه ژوندي کیږي .
تاسو فکر وکړي . داکومه ورځ اوکوم مسجد دي . دادجمعي ورځ اوجامع
مسجد دي چي روح خوشحاله کوونکي منظره يي سترګي خړوي .
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ
وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ (الجمعة ۲).
دااونیز نظام ، چي دمسجدونو دنظام په لړۍ کښي په هره میاشت کښي
څلورځله اوکله هم پنځه ځله رامنځته کیږي ، ورڅخه خلګو اوهیواد ته تل
ګټه رسیږي .

## کلنۍ منظم

په دي تنظیم دکال دوولس میاشتي تیریږي ، ورسره دوه ورځي څه نوري
بیلګي هم لري چي په هغوئ کښي دانظام نور هم ګټور اواهمیت لري .
داپوښتنه ضرور راولاړیږي چي کوم داسي مسجد به هم وي چي دټولي
نړۍ مسلمانان پکښي راغونډیږي ، اودادمسجدونو نظام دومره نړیوال
وي .
دلوی الله ﷻ په لکونو لکونو واره شکر دي چي دي نظام داکمي هم پوره
کړي دي ، په دي دوو ورځو کښي ، یوه ورځ په کال کښي داسي هم ده چي
دامهم پکښي ترسره کیږي . داد ذی الحجی میاشت اودابراهیمي سنت
دیاد دتازه کولو ورځ ده . داهم دیوه مسجد فیض اوبرکت دي چي دټولي
نړۍ دمسلمانانواستاذی پکښي په یوه تاریخ ،یوه ورځ اویوه ښارکښي
راغونډیږي . ددي مسجد نوم ،مسجدحرام دي کوم چي (بیت الله) هم بلل
کیږي .

دمولانا مفتي محمدظفيرالدين صاحب (مدظله ،په وينا ، دمسجد
یوعظمت شان دادي چي کله به - رسول الله ﷺ له سفر څخه راغي په
مسجد کښي به يې دوه رکعته لمونځ وکړ اوله خلګو سره به يې هلته کتل
رسول الله ﷺ به صحابه وو ته هم ويل چي له سفر څخه دراتلو په وخت
کښي مسجد ته لاړشي ، لمونځ وکړی اوبيا دخپل مقصد په لور لاړشي
(مسلم شريف . لومړي ټوک ۲۴۸ مخ
اعتکاف هم چي يوه سنت طريقه ده اوډيري ګټې لري ورته مسجد شرط
دي .

## مسجد کوم ځای ته ويل کيږی ؟

**مسئله** : مسجد دداسي ځای ،داسي ځمکي ، داسي تعمير نوم دی چي
دالله ﷻ دخاص عبادت( فرض عين ) لمانځه د اداء لپاره وقف شوي وي .
{دفرض عين قيدځکه شته چي دجنازي دلمانځه اوداخترونو دلمونځونو
دځای (عيدګاه ) احکام بيل دي.} (رفعت قاسمي ) .
په داسي ځای ،تعمير ، دروازه اوديوال ،بام يا ځاله جوړول شرط نه دي .
(طحطاوي دوهم ټوک ۵۳۲ مخ قاضي خان څلورم ټوک ۷۱۲ مخ
المسجَدُ و المسجِدُ - دسجدي ځای ،دعبادت ځای.
المسجدِالحرام - بيت الله شريف .
المسجد الاقصی - دبيت المقدس مسجد .
المسجدانِ - دمکي اومديني مسجدونه .
سَجَدَ ،سُجُوداً - دعبادت لپاره په ځمکه ټنده (وچوي ) اېښودل .
السّجادَة - ډير سجده کوونکي .
السَّجادَةُ والمَسْجَدَة -دلمانځه (سجدی ) ځای (مصباح اللغات مخ ۳۶۱ ) .



**مسئله** : که ځای زيات وي ، مسجد دوه برخي لري . يوتعمير اوبله خالي
برخه . په تعميري برخه کښي يي په يخ اوباد باران کښي لمونځ کيږي .
ورته مسجد شتوي (ژمني مسجد) ويل کيږي اوپه جماعت ځای ورڅخه
تعبير کيږي. په بی تعميره ځای کښي دتودوخي په وخت کښي لمونځ کيږي
اودمسجد صيفي ( اوړني مسجد ) په نوم ياديږي . په دي ترتيب په يخني
کښي دننه په تعمير کښي اودتودوخي په وخت کښي دمسجد په صحن
کښي دجماعت لمونځ کيږي. دادواړي برخي په مسجد کښي شاملي دي
اودمسجد په نوم ياديږي .
(شامي لومړي ټوک ۱۷۱ مخ فتاوی رحيميه دوهم ټوک ۱۵۰ مخ ).

**مسئله** : مسجد په لغت کي دسجدي ځای ته وايي خو په اسلام کښي
مسجد دهغه ځای نوم دي چي دمسلمانانو دلمانځه لپاره وقف شوي وي .
(آپ کي مسائل دريم ټوک ۱۱۳مخ مرقاة شرح مشکوة لومړي ټوک ۴۴۱ مخ )

## مسجد جوړول فرض دی که واجب ؟

**مسئله** : په هر ښار ،قصبه اوکلي کښي داړتيا په اندازه دمسجد لپاره
ځمکه وقف کول کفايي فرض دي . ورباندي تعمير جوړول فرض نه بلکي
مستحب دي .
(امداد الاحکام لومړي ټوک ۴۴۹ مخ شامي دريم ټوک ۱۰۳ مخ

## دمسجد لګښت له شخصي پيسو کيږي اوکه له چندي (مرستي ) ؟

**مسئله** : که دمسجد دودانوونکي او اولاد يي داځواك وو چي دمسجد
اړتياوي پوره کولای شي ، کوم شکايت پکښي نه راپيداکيږي ، دنورو
لپاره دخل اوانتظام، چنده کول اوهلته دتعميرودانولو حق نشته . نه

دتصرف حق څوک لري . که څه شکایت وي ، منتظم اومتولي یي رفع کوي که ورسره پیسي نه وي دمسجد داړتیاوو دپوره کولو لپاره چنده اومرسته غوښتلای شي .

(فتاوی محمودیه) . پنځلسم ټوک ۱۸۵ مخ)

## دزیانمن شوي شي بدل مسجد ته ورکول

**مسئله** : که څومره زیان رسیدلي وي ، دهغه دبیعی ترلاسه کول یوحق دي که هغه بدل اوبیه په خپل مصرف رسوي اوکه یي مسجد ته ورکوي ، جائز دي . داهغه وخت چي دازیان دسړي مملوك شي ته رسیدلي وي .

(فتاوی محمودیه دولسم ټوک ۲۸۹ مخ)

## له حکومت څخه دمسجد لپاره دمرستي اخیستل

**پوښتنه** : دحکومت له خزاني څخه( دلاټري) ، ټکس اوهرډول روا اوناروا مالیاتو لاس ته راغلي مال دمسجدونو دودانولو ، پراخولو اوترمیم لپاره استعمال کیدلای شي اوکه نه ؟

**ځواب** : که حکومت روا اوناروا شتمني سره خلطه اوګډه کړي وي . اوله دي ګډي شتمني څخه دمسجد لپاره پیسي ورکړي . داحرام نه دي دهغوئ اخیستل اوپه مسجد لګول شرعا روا دي .
ځکه چي حرام پکښي استهلاك شوي دي . ګډول دهلاك حکم لري . داچي حکومت روا اوناروا سره ګډ کړي اودهغوئ مالك دي . کوم شي چي يي په ناروالاره ترلاسه کړي دي دهغوئ بدل ورکول لازم دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۴۳) .

**مسئله** : له حکومت څخه داسي پور اخیستل چي سود ورته ورکړي . دمسجدلپاره يي اخیستل روا نه دي .



(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۵۷ ) .

## دمسجد شتمني په مدرسه کښي لګول

**مسئله** : مسجد ته دراغلو پیسو مصرف په مسجد کښي لازمي دي . دمدرسي یانورو شیانو په ودانولو یا دنورو اړتیاوو په پوره کولو کښي يي لګښت روانه دي . مسجد هم دخدای ﷻ لپاره دي . اومدرسه هم دخدای ﷻ لپاره ده ، خودیوه شتمني په بل کښي لګول جواز نلري . لکه چي دیوه مسجد پیسي په بل مسجد مصرف کول هم جائز نه دي اودیوي مدرسي مال په بله مدرسه کښي لګول هم روانه دي . ځکه ټول حساب به ګډوډ کیږي . خوکه مدرسه اصل وه اودمدرسي لپاره مسجدهم جوړیږي نو دهغه مسجد مصارف له مدرسي څخه پوره کیدلای شي .

(فتاوی محمودیه دولسم ټوک ۲۲۵ مخ )

## په مسجد کښي داهل تشیع دچندې حکم

**مسئله** : داهل سنت والجماعت اوداثناعشریه ترمینځ په عقیده کښي ښکاره توپیر دي . نو په دیني اومذهبي معاملوکښي دي له هغوئ څخه چنده اومرسته نه اخیستله کیږي . که یي هغوئ ورکوي یو له اهل سنتو ته دي هبه کړي اوبیا دي هغه دلته ولګوي . که یي پیسي ورکړي اوبیرته ردول يي مناسب نه ښکاره کیدل نوبیا دي په بیت الخلآء اودلامبلو په ځای کښي استعمال کړي . یا دي د مسجد دبیا کورتعمیر جوړولو لپاره استعمال کړي .

(فتاوی رحیمیه ۲ ټوک ۸۹ مخ ).

# په مسجدکښې دکفر دحالت دپیسو لګول

**پوښتنه** : که یوځوك نوی اسلام ومنې اوشتمنې ورسره وي . آیاهغه شتمنې په مسجدونو کښې مصرف کولای شي ؟

**ځواب** : ځینې پیسې داسې وي چې په هیڅ مذهب کښې حلالې اوروانه وي . لکه دغلا ، چور اوغصب پیسې . که داسې پیسې دکفر په حالت کښې ورسره وي .نو دنوي مسلمان شوي شخص لپاره یې حکم دادې چې هغه دې اصــل مالك ته بیرته ورکړي . که داورته ممکن نه وي اومالك یې دثواب اهل وي یعنې مسلمان وي،هغه دې دثواب درسیدلو په نیت صدقه کړي. که ورته دامعلومات نه وو چې مالك یې مسلمان دې که کافر . په دې صورت کښې دې له وبال څخه دخلاصون په نیت هغه صدقه کړي اوله خپل ملکیت څخه دې وباسي .

ځینې شتمنې اوپیسې داسې وي،چې مسلمان ته شرعاً حلالې نه وي،خوغیر مسلم ته په صحیح ملکیت کښې ورپاته وي .لکه دشرابو دکاروبار پانګه اودخنزیر دکار د کاروبار پیسې چې هغه ته رواه وي اوهغه یې صحیح مالك دې .

که له چاسره همداسې پیسې وي اومسلمان شو هغه پیسې په نیکو کارونو کښې لګولای شي. په مسجد اومدرسه کښې یې مصرف کولای شي، ترمسلمان کیدلو وروسته له هغه څخه که بل مسلمان داپیسې واخلې هغه یې هم په نیکو کارونو کښې مصرف کولای شي .

(نظام الفتاوی ج۱ص ۳۳۳ دشامي لومړی توك ۲۴۷ مخ ،اودبذل لومړی توك ۳۷ مخ په حواله ).



# په مسجد کښې دتور بازار دکارکوونکي دپیسو لګول

**پوښتنه** : که کوم سوداګر په تور بازار کښې کارکوي،که مسجدته مرسته ورکړي،دهغه روپۍ په مسجد کښې مصرف کیدلای شي اوکه نه ؟

**ځواب** : په دې ډول هم ملکیت حاصل کیدلای شي . په مسجد کښې یې هم مصرف کولای شي . خوداطریقه داسې ده چې بې عزتې وسره تړلې ده اودمال هم ورکړه دزیان خطر شته .

**مسئله** : که کوم بدعتي شخص مسجد تـه مرسته ورکړي ، په مسجد کښې یې لګول روا دي

(فتاوی محمودیه اتلسم توك ۲۱۹ مخ).

**مسئله** : دسودپیسې په مسجدکښې لګول صحیح او روا نه دي . که څه هم (سودخور) مړشوي اوپه خوب کې یې چاته ویلي وي ، بیا هم روانه دي

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۷۷ ) .

**مسئله** : په ناروا لاره ترلاسه شوي پیسې ، په مسجد کښې لګول رواکار نه دي .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ص ۱۹۳ ).

**مسئله** : حرام مال په مسجد کښې مصرف کول ناروا دي . که په حرام مال سره ځمکه واخیستله شي اومسجد ورباندې ودان شي هلته لمونځ کول مکروه دي .

( فتاوی محمودیه(ج۱۰ص ۱۳۸ ) .

**مسئله** : که په حرام مال ځمکه واخیستله شي ، بیع بیرته فسخ شي اوبیا یې په حلال مال سره واخلي اومسجد ورباندې ودان کړي ، هلته لمونځ صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ج۱۰ ص ۱۳۹ ).

مسئله : که څوك ناروا كاروبار كوي اومسجد ته مرسته وركوي ، ورته ودي ويل شي چي حلالي پيسي دمسجد لپاره وركړي ، نارواا ومشتبه دي نه وركوي ، که هغه شخص ووايي چي زه حلالي پيسي وركوم . داچي هغه مسلمان دي له اخرت څخه ويريږي ، پور اخلي اوهغه وركوي . دهغه خبره دي ومنله شي . که په شرعي دليل ثابت نشي چي داپيسي حرامي دي ، نو ورڅخه اخيستل اوپه مسجد يي لګول روا دي.

(نظام الفتاوی ج١ ص٣٠٧ ).

## په مسجدکښي دهغه چامرسته چي عايد يي مخلوط وي

پوښتنه : دهغه چاچي مال يي حلال نه وي خو دشتمني دلاس ته راوړلو داسي لاري هم لري چي حلال مال ورباندي ګټي ، ايا دهغه مرسته په مسجد کښي لګول روا ده ، په داسي حال کښي چي هغه وايي زه په مرسته کښي حلال مال وركوم ؟

ځواب : له داسي شخص څخه مرسته اخيستل روا ده .

(فتاوی محموديه ج١ ص۴۹١ ).



## دمسجد اومدرسي له مال څخه په يوه اوبل په پور سره دپيسو خرڅول

پوښتنه : که دا اړتيا پيداشي چي دمسجد مال په مدرسه کښي مصرف شي ، آيا له مسجد څخه دمدرسي له پاره داسي پور اخيستل روا دي ؟

ځواب : که دپور په بيرته وركولو باور وي اودضائع كيدلو احتمال يي نه وي نو دمسجد دمشرانو په مشوره پور وركول روا دي .

(فتاوی محموديه ج١ ص۴۹١ ).

## دسوال کوونکي پيسي په مسجد کښي لګول

مسئله : پرته له اړتيا سوال کول ګناه ده . خو که کوم بي وزله پيسي غواړي اوخلګ يي په خپله خوښه وركوي ، هغه يي څښتن کيږي اوكه همدافقير دغه پيسي په مسجد کښي ولګوي ، داصحيح ده دهغه په مصلی لمونځ صحيح ده خوداپوهول يي په کار دي چي پرته له ضرورت څخه سوال (فقر) کول ناروا دي .

(فتاوی محموديه ج١ ص۴۹٢ ).

مسئله : په مسجد کښي دننه دڅه سوال کول منع دي ، داسي خلګ دي له مسجد څخه بهر کښيني . اوپه مسجد کښي ورته څه وركول هم ښه نه دي . خوکه څوك دكوم اړسړی لپاره دمرستي غوښتنه وکړي جواز لري .

مسئله : فقير ته په مسجد کښي څه وركول صحيح دي ، خو که په مسجد کښي سوال کول عادت کيږي نو بهر دي څه وركوي .

(آپ کی مسائل ج ٣ ص١۴٢ ).

## دمسجدمرسته په عمومي کارونو کښې لګول

**پوښتنه** : څو تنو دمسجد لپاره مرسته ټوله کړه ، خوهغه په عمومي کارونو کښې لګوي حسابونه يې له رسيدونو معلوم وي .

**ځواب** : داسې چنده ټولول ، که دلته ټوليږي يا کورونو ته پسې ځي ، له هغوئ څخه دې اجازه واخلي يا دې بيرته ورکړي . داچې رسيدونه هم لري څه ستونزه نه ده . يادې اعلان وکړي چې دامرسته په يوه بل کار کښې لګيږي که دچاخوښه نه وي ، بيرته دې ورکړي . دااعلان دې داسې وکړي چې مستقيم يا بالواسطه دمرسته کوونکو غوږونو ته ورسيږي . يا دې چاپ کړي اوتوزيع دې کړي يا دې په محلو اومسجدونو کښې اعلان کړي مقصد دادې چې يا دې په پراخه کچه سره اعلان کړي اويا دې مرسته بيرته ورکړي . نوره ذمه واري نشته

(فتاوی محموديه ج ١٢ ص ٣٠٢ ).

## دېګړۍ (سرقلفي ) پيسې په مسجد کښې لګول

**مسئله** : دېګړۍ په نوم ، دپيسو اخيستل کوم شرعي اصل نه لري ځکه يې هم استعمال په مسجد کښې روانه دي .

(فتاوی رحيميه)

## دمسجدپيسې دتجارت لپاره چاته ورکول

**پوښتنه** : دمسجد پيسې چې دمتولي په اختيار کښې وي ، هغه يې دتجارت له پاره چاته ورکړي . هغه سړی دمسجد لپاره کومه برخه معلومه نه کړه ، دمسجد پيسې يې بيرته ورکړي ، اوڅو روپۍ يې زياتې ورکړي دازياتې پيسې اخيستل روادي اوکنه ؟

**ځواب** : دمسجد روپۍ له متولي سره امانت دي ، دتجارت لپاره ورکول يې دې حق نه لري ، هيڅکله دې چاته نه ورکوي . که يې ورکوي دپور په بڼه دې ورکړي . دپور په وخت کښې دزياتو پيسو غوښتنه روا نه ده ، داسود دې خوکه پوروړي دقرض دبيرته ورکړې په وخت کښې پرته له کوم التزام څخه زياتې پيسې ورکړي ، روا دي . له حديث شريف څخه ثابت دي چې استعمال يې روا ده .

(فتاوی محموديه ج ١٢ ص ٣٠۴ ).

## حکومت ته دمسجد دپيسو ورکول

**مسئله** : دمسجد پيسې وقف اوامانت دي . متولي ته دهغوئ بل ځای لګول روا نه دي .

(فتاوی محموديه ج ١٨ ص ١٨٨ ).

**مسئله** : دمسجد شتمني په شخصي اړتيا کښې استعمالول ناروا دي . که يې څوك ولګوي توبه اواستغفار دې وکړي اوهغه مبلغ دې بيرته ورکړي . دمحلې په خلګو لازمه ده ترڅو يې له هغه څخه واخلي .

(ستاسو مسايل ج ٣ ص ١۴٨ ).

## دمسجد لپاره مرسته ترلاسه کول اومدرسه ورباندي جوړول

**مسئله** : که دمسجد لپاره مرسته وشي . په مدرسه کښې يي استعمال روانه دي . لکه دلمانځه لپاره چي ځمکه وقف شي هلته مدرسه جوړول اوددرس لپاره مشخص کول روانه دي . همداسي ځاى ماشومانو ته درس ويل هم ښه نه دي ، ترڅو دمسجد احترام وساتل شي .
دزکات ،صدقه الفطر ( سرسايي ) اودقرباني دڅرمني بيه دمسجد يا مدرسي په ودانولو کښې لګول روانه دي . هغه يوازي دبې وزله خلګو حق دي .
(فتاوى محموديه ج ۱۸ ص ۱۲۹ ).

## دمسجد اومدرسي په نوم ګډه مرسته غوښتل

**پوښتنه** : ديوه کلي خلګ که مسجد اومدرسه ودانوي اوهغوئ ته يوځاى مرسته ( چنده ) ټولوي . که خلګو ته همداسي ووايي چي موږ مسجد اومدرسه يوځاى جوړ وو اوچنده هم ورته ګډه غواړو همداسي روا دي اوکه چنده بيله ، بيله ټوله شي ؟
**ځواب** : دمسجد اومدرسي لپاره يوځاى چنده راغونډول روا دي . چي داسي اعلان وکړي چي موږ دواړه ودانوو اوخلګ دواړوته چنده ورکوي نوبيا څه تر دد پکښې دي . که چنده بيله ، بيله ټوله شي هم صحيح ده . بيا چي د هر يوه په نوم چنده وشوه هغه به په هغه لګوي ديوه چنده اومرسته دي په بل نه مصرفوي .

(فتاوى محموديه ج ۱۸ ص ۱۷۸ ).



**مسئله** : که دچندي دور کوونکو خوښه وه ، له مسجد څخه بهر دمسجد دکارونو لپاره دفتر جوړول دمسجد په پيسو روا ده .
(ستاسو مسئلې ج ۳ ص ۱۴۰ ).

## له غير مسلمان څخه دمسجد لپاره مرسته اخستل

**پوښتنه** : که دمسجد په ودانولو کښې غير مسلم مرسته وکړي ، دهغي په مسجد کښې لګول جائز دي ؟
**ځواب** : که دااحتمال نه وو چي په ټول اهل اسلام باندي احسان اړوي اونه دااحتمال وي چي مسلمانان خوشحاله کړي او دي خپل ديني شعائر پکښې ترسره کوي يا دخپلو شعائرو ستاينه کوي ، بيا دداسي مرستي اخستل اومصرف کول روا دي .
(امداد الفتاوى ج ۲ ص ۲۸۸ وفتاوى محموديه ج ۱ ص ۴۷۰ ).

**مسئله** : که دغير مسلم په مرسته ورکولو کښې داويره نه وي چي هغه پکښې کوم غلط مقصد لري . بيا مرسته اخستل جائز دي .
(فتاوى محموديه ج ۱۷ ص ۳۵۲ ).

**مسئله** : که غير مسلم په دي باور مرسته کوي چي پکښې ثواب دي ، مرسته دي ومنله شي او که دااحتمال وو چي په راتلوونکي کښې په مسلمانانو احسان بولي بيا غوره داده چي مرسته يي ونه منله شي .
(فتاوى رحيميه ج ۱۰ ص ۲۳۲ فتاوى محموديه ج ۶ ص ۱۸۸ ) ج ۱۵ ص ۸ ۱۲ ج ۲ ص ۴۷۲ نظآم الفتاوى ج ۱ ص ۳۱۳ ).

**مسئله** : که دمسجد په لاره کښې دمرستي له پاره صندوق کښيښودل شي ، که خلګ مرستي په ډول پيسي پکښې اچوي دهغو پيسو لګول په مسجد کښې روا دي . دافرق نه کوي چي هغه پيسي مسلمان پکښې اچولي دي اوکه غير مسلمان .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۷ ).

## مسجد ته دشرابو دکاروبار پیسي ورکول

**مسئله** : دشراب دکاروبار پیسي دي دمسجد په چنده کښي نه اخستل کیږي ، که یي له حلال عاید څخه لکه پور مرسته ورکوله ، جواز لري . که دچاعاید مخلوط وي خوله حلال څخه چنده ورکړي صحیح ده . که په مخلوط عاید کښي حلال غالب وو بیا یي هم مرسته صحیح ده.

(فتاوای محمودیه ج ۱۷ ص ۳۵۵ .

**مسئله** : که دشرابو دکاروبار په پیسو مسجد ودان شي ، هلته لمونځ کول مکروه دي . هلته که لمونځ وشي له کراهت سره صحیح دي . بیا دي احتیاط ورسره کیږي.

(فتاوی محمودیه ج۱۰ ص ۱۵۲ ).

## مسجد ته دخنزیر له ویښتانو څخه دبرش دجوړونکي اعانه

که څوك دخنزیر له ویښتانو څخه دبرش دجوړولو کار کوي . په دي لاره اجوره اخلي ، له هغو پیسو څخه مسجد ته مرسته ورکول روا ده . دامعاوضه او اجوره اخیستل هم حرامه نه . ده خو په خپله همداسي معامله کول حرامه ده . ځکه دامام ابوحنیفه په مذهب کښي دخنزیر له ویښتانو ګټه اخستل جواز نه لري . (فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۴۷ ج ۱ ص ۵۱۳ ).

**مسئله** : ددیني اړتیاو له پاره ، په مسجد کښي مرسته غوښتونکو اومرسته ورکوونکو ته (مرحبا) ښه راغلاست اوسبحان الله ویل صحیح دي . خوچي دلمونځ کوونکو لمونځ چي اخلال نشي .

(فتاوی محمودیه ج۱۲ ص ۲۵۴ ).



**مسئله** : په مسجد کښي ددنیا خبري لکه دپیرلو اوپلورلو ، ددعواوو خبري ، دکروندي اوباغونو خبري منع دي . دمسجد دوداني ، دامام داجوري لپاره مرسته غوښتل په مسجد کښي منع نه دي . په دي شرط چي شور اوشغب پکښي نه وي . لکه نن سبا چي کیږي ، یوه اوبل ته طعنه ورکوي ، له کمي مرسته کوونکي سره جګړه کیږي . غرض داچي دمسجد درنښت نه ساتل کیږي . داهرڅه منع دي .

دختم لپاره چي مرسته غوښتله کیږي ، ډیر ي په زور غواړي ، ریا پکښي کوي ، مقابله سره کوي دامنع دي . په مسجد کښي تلاوت ، تسبیح درود او استغفار داسي وويل شي چي لمونځ کوونکو ته تشویش پیدانشي . که په مسجد کښي زده کړه کیږي هم صحیح ده .

(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۴۸۴ ).

**پوښتنه** : دمسجد دچندي (مرستي) په روپو اخستله شوي میوه (یا شریني) داسي ویشل څرنګه دي چي هغو کسانو ته یي هم ورکړي چاچي مرسته کړي نه وي ؟

**ځواب** : که مرسته ورکوونکو اجازه کړي وي نوداسي څه ویشل روا دي اوکه اجازه نه وه ، روا نه دي . که دمرسته کوونکو دنورو لپاره چي چنده یي ورکړي نه وي اجازه وه ، نو هغوي ته هم روا ده . (

فتاوی محمودیه ج۶ ص ۱۸۷ ).

**مسئله** : دشیریني لپاره ټوله شوي مرسته دي دور کوونکو په اجازه دمسجد په نورو ضروریاتو ولګول شي .

(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۱۰۷ ).

## مالي جريمه اخستل اوبيا په مسجد لګول

**پوښتنه :** په يوه ټولنه کښي څه قوانين داسی وی چي څوك ورڅخه تخلف وکړي ، سياستاً له هغوئ څخه دجريمي په توګه پيسي اخستلي کيږي . همداسي پيسي په مسجد کښي لګول جواز لري کنه ؟

**ځواب :** باوري خبره داده چي داسي جريمه اخيستل جواز نه لري . که داسي جريمه واخستله شي ، بيرته دي مسترد شي په مسجد او نورو ځايونو کښي يي لګول روا نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ٦ ص ۱۹۳ دردالمحتار ج ۳ ص ۳۷۵ مخ په حواله ).

## دمسجد لپاره په زور مرسته اخستل

**مسئله :** په زوره مرسته اوچنده اخستل ناروا دي . که يي څوك په خپله خوښه ورکوي تري اخلي دي او جبر ورباندي ګناه ده . همداسي مال په مسجد کښي لګول هم ناروا دي . که چا په زور مرسته اخستي وه ، دهغي بيرته ورکول لازمي دي .

(فتاوی محمودیه ج ٦ ص ۱۲۰ دشامي ج ۱ ص ۲۸۸ مخ په حواله ).

**مسئله :** په زور سره مرسته اخستل ناروا دي . له چا څخه چي په زور اخستله شوي وي ، هغه دي عفوه کوي ، دخدای ﷻ په نوم دي ورکوي او دورکړي دقبول دعادي کوي . هغه مسجد ته دي ورځي ، توبه دي کاږي ، لمونځ يي په هغه مسجد کښي روا دي .

دمسجد له پاره غير مسلم څخه مرسته اخستل بي غيرتي ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۸۱ )

## دمسجد دپيسو دپور دورکولو لپاره په سود پيسي اخستل

**پوښتنه :** له چا سره دمسجد امانت روپي ايښي وي . هغه يي مصرف کړي بيا يي له بل چا څخه په سود ( ناروا ګټه ) پيسي واخستي او دمسجد امانت يي ورکړ . آيا ددي ډول پيسو مصرف په مسجد کښي روا دي ؟

**ځواب :** په سود قرض اخستل ، هغه روپي حرامي نه دي . له هغوئ څخه دمسجد دامانت ورکول روا دي . البته هغه پيسي چي له قرض سره يي دسود په نوم ورکوي . دهغي ورکول ناروا دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۹ ).

**مسئله :** احمد له محمود څخه دمسجد دودانولو لپاره روپي پور کړي . بيا يي له حرامي ګټي څخه هغه پور ورکړ . داپيسي له مسجد لپاره حلالي دي ځکه هغه اخستل شوي روپي دحرامي ګټي نه دي . دلته يي حراموالي مؤثر نه دي . ددي کار حرمت بيله خبره ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۷ ).

## دسود خور له ترکه شوي شتمني څخه دمسجد مصرف

**مسئله :** له والدينو څخه په ترکه سره اولاد ته مال حلال پاته کيږي ، هغه په مسجد کښي لګول شرعاً روا ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۹ ).

## ديوه مسجد روپۍ په بل مسجد لګول

**پوښتنه :** دوه مسجد ونه دي ، يو شتمني لري اوبل يي نه لري . دشتمن

اوفرش لانشته . دشتمن مسجد پیسې په دا بې شتو مسجد لګول کیدلای شي ؟

ځواب : که هغه پیسې دمرستې اوچندې وي . دمرستې دور کوونکو په اجازه دهمدې مسجد پیسې په هغه بل بې شتو مسجد لګول کیدلای شي

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ١٥٧ ).

## په مسجد دغلا دلرګیو او حرام مال لګول

**مسئله** : دغلا یا بلې حرامې شتمنې په واسطه که مسجد جوړیږي حکم یې دادې چې هلته به لمونځ نه کوي خو هغه به له بې احترامۍ څخه ساتي، هلته دحائضې میرمنې اوناولیو ننوتل ناروا دي . هغه مسجد دې خوندي شي . که یې ځمکه دغصب اوغلادپیسو نه وي او په حلالو پیسو یې اخستې وي . روا لاره یې داده چې ودانۍ دې ونړوي اودحلالې شتمنې په مصرف دې بیا جوړکړي ترڅو دګټې اخستلو شي .

(فتاوی رحیمیه ج١٠ ص ٢٤٢ دمنیة المساجد ص ٣٢ اوکبیري ص ٥٧١ په حواله ).

**مسئله** : که له پلټنې څخه څرګنده شي چې سمڅ دغلا مال دي . دهغه اخستل په مسجد کښې یې لګول که څه هم داوداسه په ځای کښې وي . روا نه دي . په غلا سره یې ملکیت هم نه حاصلیږي . نو اخستل یې بې مور ده دي . دالله تعالی په کور کښې دې حلال مال مصرف کیږي ، ناپاکه شتمنې دې نه پرې لګوي ...

(فتاوی محمودیه ج ١٥ ص ١٢٨ ).



## په مسجد کښې دموندل شویو پیسو مصرف کول

**مسئله** :: موندل شوې پیسې د( لقطه ) حکم لري . دڅښتن پلټنه دې وشي وردې کړي . که یې څښتن ونه موندل شو ، بې وزله خلګو ته دې په صدقه کښې ورکړي ، په مسجد کښې دې نه مصرف کوي

(فتاوی محمودیه ج ١٥ ص ٢٤٧ ).

## په مسجد کښې دقربانۍ دڅرمنو دبیعې مصرف کول

**مسئله** : که دقربانۍ څرمنې دمسجد متولي ته ورکړل شي، هغه یې څښتن شي بیا یې خرڅې کړي او پیسې یې په مسجد مصرف کړي روا دي . که یې هغه څښتن نشي اوخرڅې یې کړي بیه یې په مسجد مصرف کړي داسې روا نه دي .

په دې صورت کې دې هغه خرڅې کړي اوبیه دې خیرات کړي ، ځکه دقربانۍ پوستکي خرڅول اوپیسې یې صدقه کول لازمي خبره ده . بیه یې مسجد ته ورکول جائز نه دي . خو که یې څښتن په خپله خرڅې نه کړي بل چاته یې وبخښي اوهغه یې خرڅې کړي بیا که یې قیمت هرځای ولګوي صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ج ٤ ص ٣٣١ ).

## دزکات پیسو ته حیله جوړول اوپه مسجد لګول

**مسئله** : دمسجد په ودانولو یا دامام او مؤذن دمعاش او اجورې په ورکولو کښې دزکات پیسې ورکول جائز نه دي . نو دمسجد په لګښت کښې دې هیڅکله دزکات مال نه مصرفوي حیله جوړول اوبیا ورکول یې هم نه دي پکار .

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ٩٤ ).

# دمسجد لپاره دچندې په روپو دوکانونه جوړول

**مسئله** : دکوم مقصد لپاره چې مرسته اخستله کیږي یا یې په کوم نوم خلګ ورکوي له هغه مدرك څخه پرته دهغوي مصرف کول ناجائز دي که هغه ددوکان جوړول وي یا بل مورد .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۳۲۳) .

**مسئله** : که له مرسته کوونکو څخه داوداسه دځای دجوړولو په نوم مرسته واخستله شي نو هغه دي بل ځای نه مصرفیږي که یې بل ځای مصرف کړي وه بیرته ورکول یې واجب دي او که یې مرسته کوونکي بیرته وغواړي داحق لري او ورکړه یې ضروري ده

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۳۲۴) .

# په سود پیسې اخستل او په مسجد لګول

**مسئله** : کومې پیسې چې په سود اخستلې شي هم هغه رقم حرام نه دي دهغوئ مصرف په مسجد کښې هم صحیح دي خو په سود دپیسو ورکول او سود ورباندې اخستل ګناه دي له هغوئ راګرځیدل ضرور دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۸۲) .

**مسئله** : که دمسجد منتظمین په سود پیسې واخلي اودمسجد په ودانولو یې ولګوي هغه ګنهکار دي دهغه سود دمسجد له پیسو څخه ورکول هم ګناه ده او ضمان (بدله) یې هم ورباندې شته دخیراهل کسان دي په خلاص زړه له پاکې ګټې څخه مسجد ودان کړي .

(نظام الفتاوی ج ۱ ص ۳۲۳) .



# دفلم دممثل ګټه په مسجد کښې لګول

**مسئله** : کومې پیسې چې په حرامه لاره ترلاسه کیږي نه دي مسجد ته منل کیږي اونه هم مدرسې ته هغوي په بې وزلو صدقه کول لازم دي که بې وزله بالغ کسان یا دهغوي نابالغه کسان زده کړي کوي هغوئ ته دي صدقه ورکیږي همدا سې کسان دي دمدرسې مسئولینو ته چنده نه ورکوي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۹۸) .

**مسئله** : په حرام یا مشتبه شتمنې دمسجد ودانول شرعا جواز نلري .

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۹۹) .

# دمزار (زیارت) له چندې څخه دمسجد دامام اجوره

**پوښتنه** : دیوه مزار په انګړ کښې مسجد دي خلګ ځي راځي دمزار ترڅنګ چې کوم صندوق دمرستې دغونډولو لپاره ایښودل شوي دي هلته روپې اچوي غیر مسلمانان هم دلته پیسې اچوي دچانیت معلوم نه دي له همدې پیسو څخه دمسجد دامام او مؤذن اجوره ورکول جواز لري ؟

**ځواب** : ښکاره خو داده چې داروپې دمسجد او مزار دخوندي ساتلو لپاره خلګ دلته اچوي همداپیسې ددواړو داړتیاپه پوره کولو کښې صحیح دي که هلته ورباندې کومه ښوونځې ودانه شي هم مناسب دي ترڅومسجد هم ودان وي اودمزار څښتن ته یې هم ثواب ورسیږي له هغوئ څخه دمدرسې لپاره په زور سره پیسې اخستل د چا حق نه دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۷۱) .

## دمسجد دخوندي ساتلو لپاره په مقدمه ( دعوه ) کښې دمسجد دپيسو لګول

مسئله : دمسجد په وقف ځمکه کښې په زور سره مدرسه جوړول حق نه دي که څه هم دديني زده کړي مدرسه جوړول او دتعليم عامول لوي اجر لري خو ناحقه طريقه دي ورته نه کارول کيږي دهغې لپاره له متولي سره جګړه کول هغه له دندي ګوښه کول دعوه ورسره کول بد اوګناه ده .

که په همداسي دعوه کښې دمسجد حفاظت وي دهغه دشتمني حفاظت وي نو دمتولي لپاره داجائز دي چي دمسجد له پيسو څخه دامصرف وکړي چي داپه اصل کښې دمسجد لپاره دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۳۵ ).

## دمسجد له پيسو څخه له بي وزله سره مرسته کول

پوښتنه : که دکوم مسجد زياته شتمني وي له هغې څخه کوم بي وزله ته پور ورکول روا دي اوکه نه ؟

ځواب : داسي ورکړي ته اجازه نشته

( فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۷۳ ).

## په مسجد کښي دبيعاني ( بياني ) دپيسو لګول

پوښتنه : يوشخص دمسجد متولي دي دمسجد اړوند کوم ځاى يي خرڅ کړي څه پيسي يي مخته دبيعاني په توګه واخستلي هغه سړی پښيمانه شو متولي همدا ځاى په بل چا خرڅ کړ هغه دبيعاني پيسي ورڅخه پاته شوي اودهغه سړی دوعده خلافي له امله يي بيرته ورنکړي دهمداسي پيسو لګول په مسجد کښي روا دي اوکه نه ؟



ځواب : که په کوم سبب بائع يا مشتري دپيرونکي او پريدونکي دسودا وعده پوره نکړاي شواي دبيعاني ورکړه ضروري ده دهغې ګرځول جائز نه دي نو متولي ته لازمه ده چي هغه بيعانه بيرته ورکړي داسي روپې په مسجد کښي لګول هم روا نه دي .

(فتاوی محموديه ج ۶ ص ۱۲۲ ).

## دمسجد له عايد څخه دمعاش وضع کول

پوښتنه : که دمسجد کوم خادم له خپل کار څخه غير حاضر شي دهغه دغير حاضري دورځو معاش ګرځول اومسجد ته ورکول جواز لري که نه ؟ دمسجد دمشرانو داحق شته چي هغه ته دغير حاضرو ورځو معاش ورکړي ؟

ځواب : دمسجد مشرانو ته لازمه ده چي دخادم درخصتي انتظام ولري مثلا په مياشت کښي يوه ورځ يا دوه ورځي په کال کښي پنځلس ورځي يا يوه مياشت يا له حالاتو سره سم يوډول ورته درخصت اندازه وښيي که ترهغه زيات غير حاضر شي بيا به معاش ورڅخه ګرځوي دمسجد دشتمني ورسره دااختيار نشته چي بي مورده يي ولګوي .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۲۷ ).

مسئله : که ددندي په پيل کښي له امام يا نورو سره خبره شوي وه چي درخصت دورځو معاش او اجوره بهٔ هم ورکوله کيږي نو بيا درخصت دورځو اجوره ورته ورکول روا ده که داسي خبره شوي نه وه بيا به له رواج اوعرف سره سم دهغو ورځو معاش ورکول کيږي چي هغه نور ورکوي نور زياتوالي دمسجد دمسئولينو ترمصلحت پوري اړه لري .

(نظام الفتاوی ج ۱ ص ۳۰۲ ).

## ديوه شي لپاره دوقف پيسي بل ځاى لګول

**پوښتنه** : که وقف شوي شتمني بيله ، بيله وه څوکسان سره يوځاى شول او ورسره موقوفات يي يوځاى کړل ديوه مسجد عايد يي په بل کښي مصرف کړ داسي مصرف جائز دي ؟

**ځواب** : دکوم مسجد لپاره چي کومه شتمني ورکړل شوي وي ، ذهغي مصرف بل ځاى روا نه دي .

**مسئله** : داچي ديوه مسجد پيسي په بل مسجد کښي مصرف کول ناروا دي . نو دمسجد شتمني به په ښوونځيو کښي لګول څرنګه روا وي . څوك چي يي مصرفوي هغوي ګنهکار دي . په هغوئ يي پريکړه لازمه ده په وقف شيانو کښي دداسي کسانو مشر اومسئول مقرر کول هم روا نه دي .

(فتاوى محموديه ج ١٥ ص ١٢٦ ) ( فتاوى رحيميه ج ٢ ص ١٨٥ ) .

**مسئله** : کومه شتمني چي مسجد ته وقف شوي وي . هغه د يتيمانو دهستوګني ته وقف کول جائز نه دي ددرمختار خبره ده چي که دوو کسانو بيل بيل مسجدونه ودانول ، يا يوه شخص مسجد اومدرسه ودانوله دهر يوه لپاره مال بيل وقف شوي وو قاضي ته داحق نشته چي ديوه وقف عايد په بل وقف ځاى مصرف کړي ( درمختار له شامي سره ج ٣ ص ٥١٥ ) .

هوکه وقف کوونکي ، په وقف پاڼه کښي ليکلي وو چي له اړتيا څخه زياته شتمني دي بي وزلو ته دمرستي په توګه ورکړي ، يا دي دکوم خير په کار کښي ولګوي له هغي ليکني سره سم يي نور ځايونه مصرف کول صحيح دي .

(فتاوى رحيميه ج ٢ ص ١٨٥ ) .



## ديوه مسجد روپۍ په بل کښي لګول

**مسئله** : کوم شي چي يوه مسجد ته په ځانګړي ډول وقف شوي وي . دهغه شي عايد په بل مسجد کښي مصرف کول جواز نلري . خو که دمسجد دودانولو له پاره په څنګ کښي ورسره ديني مدرسه جوړيږي شرعا روا دي .ځکه داهم دمسجد دمصلحت اوخير لپاره ده خو ددنياي علومو زده کړه دمسجد په مصلحت اوګڼه نه ده . هلته يي مصرف کول جواز نلري ديني تعليم ، که دقران کريم زده کړه وي که دشرعيه علومو زده کړه وي که په هره ژبه عربي ،اردو ، ګجراتي ( پښتو ، دري ) يا بله ژبه وي . ددي مسجد دشتمني مصرف پکښي جائز دي .

(فتاوى محموديه ج ١٠ ص ١٨٦ ) .

## دسود پيسي دمسجد په رڼا کولو يا نورڅه کښي لګول

**مسئله** : ناروا عايد په مسجد کښي مصرف کول جواز نلري . که دبريښنا مزي يا پيوزي ( پنکي ) په ناروا پيسو اخستل شوي وو . هغه دي لري کړي او دحلالي شتمني په پيسو دي نور واخلي . که په داسي کار سره فتنه پيداکيدله بيا دي هغه پيسي کومي چي په سود اخستلي شوي دي . مالك ته يعني هغه چاته چي سود ورڅخه اخستل شوي دي ورکړي . که اصل مالك معلوم نه وو ، بيا دي هرومرو پيسي بي وزلو خلګو ته صدقه اوخيرات ورکړي .خو وړاندي دي داتحقيق وکړل شي چي دا پيسي چي مصرف شوي دي . دسود دي اوکه نه دي که چا دهمداسي پيسو دمصرف رڼا ته لمونځونه کړي وو هغه صحيح دي

(فتاوى محموديه ج ١٢ ص ٣٢٦ ) .

## بې وارثه شتمنۍ په مسجد کښې مصرف کول

داسې څوک چې وارث نلري اوخه پریږدي . کوم وصیت یې هم کړی نه وو ، نژدې او لیرې یې هم داسې څوک نه وو چې مال اوشتمنې یې ورته ترکه شي . دهغه پاته شتمني دې په مسجد اومدرسه کښې مصرف شي .
(فتاوی محمودیه دولسم توک ۲۷۱ مخ دردمختار پنځم توک ۴۸۸ مخ اوشامي دوهم توک ۸۹ مخ په حواله )

**مسئله** : داسې څوک مړشو چې کوم وارث یې نه درلود . دهغه دتکفین اوتجهیز لپاره یې مرسته ( چنده ) ورته ټوله کړه . که له تکفین او تدفین څخه یې همدا دمرستې پیسې زیاتې شوې دمرستې کوونکو په اجازه دې هغه پاته پیسې په مسجد مصرف کړې .
(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۷۹ ).

## په اجاره شوې ځمکه دمسجد ودانول

**مسئله** : دنوې (۹۰) کلونو لپاره په اجاره شوې ځمکه که مسجد ودان شوې وو . له حکومت څخه اخستله شوې نه وه . نه حکومت خلګو ته ورکوله چې ورباندې مسجد ودان کړي . حکومت داحق هم ورباندې لري چې هغه ځمکه بیرته وګرځوي نه داسې ځای ، داشرعي مسجد نه دی . بلکه یو عبادت ځای دی . دجماعت دلمانځه ثواب ورته رسیږي خو دمسجد دلمانځه ثواب نلري .
(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۷ دردمختار ج ۳ ص ۵۰۴ په حواله ).
داچې مجبوري وي اوپرته له اجاري ځمکې نه پیداکیږي نو دمسجد دثواب هیله پکښې شته ).

**مسئله** : دشرعي مسجد دتحقیق لپاره داضروري ده چې هغه ځمکه دتل لپاره دمسجد وقف وي . که هغه ځمکه دخه مودې له پاره اجاره یا کرایه



شوې وي . یا دمالك له اجازې پرته دغصب په ډول نیولې اوبیا مسجد ورباندې ودان شوې وي . هغه شرعي مسجد نه دی .
(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۸ دعالمګیري ج ۳ ص ۲۳۸ په حواله. هدایة اولین ۲۲۴ ص کتاب الوقف وکفایت المفتي ج ۷ ص ۴۲ ).

## له ودانیو پرته ، په ډګر کښې دمسجد بنسټ ایښودل

په دې ودانیو ډګرونو ، ځنګله اوبیا بان کښې چې مسلمانان دهستوګنې دځایونو دجوړولو لپاره ځمکه واخلي اوهلته دمسجد اومدرسې دجوړولو لپاره هم یوه ټوټه ځمکه ځانګړې کړي . دودانیو دجوړولو کار هم پیل کوونکي وي اوهغوئ تبرکا دمسجد داساس ډبره کښیږدي . خو نژدې لس کلونو تیر شي ، مسلمانان دکورونو دجوړولو څواک ونه مومي ، دمسجد داساس تر ایښودلو وروسته اذان اولمونځ شوي نه وي ، دمسجد دودانولو قرینې هم نه ښکاري نژدې نور کوم دمسلمانانو کلي هم نشته . مسجد ته دلته اړتیا هم نه لیدله کیږي ، دلته یوازې دتهداب اواساس په ایښودلو دمسجد حکم نه جاري کیږي .
(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۸۷ دعالمګیري ج ۲ ص ۲۱۴ په حواله )

## په مشترکه ځمکه دمسجد ودانول

**مسئله** : که په مشترکه ځمکه دټولو مالکانو په خوښه مسجد جوړ شو . هلته لمونځ جائز دی . که څوك هلته دلمانځه دنه کولو هڅه وکړي ګناه ده . که نوې مسجد دټولو مالکانو داجازې په خلاف ودان شي ترڅو ټول څښتان اجازه ورنکړي ، هلته دې لمونځ نه کیږي .
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۲۲ )

# دمسجد ځمکه قبضه کول

**مسئله** : کومه ځمکه چې دمسجد لپاره وقف شوي ده . هغه ځان ته کول اوغصب کول حرام دي . هغه قبضه ختمول اومسجد ته پریښودل ضروري ده . هغه ځمکه دیوال کول ، دمسجد دګټې لپاره خوندي ساتل یي ضروري دي ترڅو بیا ورباندي څوك قبضه ونه لګوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۸۲ ).

# دمسجد په ځمکه دکرایي لپاره دوکانونه ودانول

**پوښتنه** : یوه ځمکه دمسجد لپاره ځانګړي شوي ده . بل څوك ورباندي دوکان جوړوي اومسجد ته یي کرایه ورکوي . آیا داسي صحیح دي ؟

**ځواب** : یوداسي صورت دي چي دمسجد ځمکه چاته په کرایه ورکړي ، پیسي وړاندي تري واخلي دوکان ورباندي جوړ کړي دکرایي سړی ته یي ورکړي ، ترهغه دي دهغه په واك کښي وي ترڅو ورکړل شوي کرایه پوره شي . داصورت صحیح دي . کرایه والا کولاي شي دوکان پراخ کړي داسي هم جواز لري چي خالي ځمکه په کرایه ورکړي ،. هغه ورباندي دوکان جوړ کړي که دکرایي وخت ختم شي دوکان دي رنګ کرایه ورکړي هغه ورباندي دوکان جوړ کړي . که دکرایي وخت ختم شي ، دوکان دي رنګ اوځمکه دي بیرته مسجد ته پریږدي . یا دي دوکان جوړ مسجد ته پریږدي خو چي کوم مصرف یي شوي دي هغه دي له مسجد څخه و ګرځوي

دخالي ځمکي په کرایه ورکولوکښي دي داشرط نه ږدي چي ددي ځمکي کرایه داده چي دوکان ورباندي جوړ کړي او تر دومره مودي وروسته به [illegible]کان مسجد ته پریږدي .



# دیوه مسجد روپي بل مسجد ته پور ورکول

**پوښتنه** : دمسجدونو اداري اومشران بیل ، بیل وي . یومسجد هیڅ پیسي نلري دیوه مسجد پیسي په بل مصرف کولاي شي یا یي پور ورکولاي شي ؟

**ځواب** : دمسجدونو دمسئولینو په مشوره سره دیوه مسجد پیسي بل ته پور ورکولاي شي . بیرته ادایي ضروري ده . داهغه وخت چي متولي مشترك وي یا اداري هیئت مشترك وي . او دټولو اوقافو سرپرستي کوي

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۷۳ دردالمحتار ج ۲ ص ۵۷ په حواله ).

# دیوي ځمکي یوه برخه دمسجد لپاره بیل کول

**پوښتنه** : چادخپلي ځمکي څه برخه دمسجد په نیت او دعبادت ځای په توګه بیله کړه . احاطه یي کړه . لمونځونه پکښي کوي خو دروازه یي خپل لوري ته پري ایښي ده بله دروازه نلري آیا شرعا دامسجد دي ؟

**ځواب** : که هلته خلګو ته دلمانځه اجازه وي اذان اوجماعت کیږي ، دټولوراتلو لاره داسي وي چي ممانعت نه وي نو هغه شرعا مسجد دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۷۴ اورحیمیه ج ۶ ص ۱۰۲ ).

**مسئله** : که بشپړ وقف شوي وي ، بیرته دهغه منسوخ کول دچا حق نه دي . نه څوك پکښي دمالکانه تصرف حق لري یعني وقف کوونکي نه هغه خرڅولاي اونه یي هم چاته بخښلاي شي . نه پکښي وصیت کولاي شي اونه هم هغه په ګروي ورکولاي شي .

(یعني دخدای ج لپاره ( لوجه الله ) یو شي وقف کول بیا چا ته پکښي دملکیت حق نه پاته کیږي اواختیارات یي پکښي ختمیږي .

( رفعت قاسمي )

## که غیر مسلم (نامسلمان) مسجد ودان کړي ؟

**پوښتنه** : دیوي کارخاني غیر مسلم مالك په کارخانه کښې یومسجد جوړ وي . اوه اته کاله هلته مسلمان کارګران په جماعت سره لمونځونه کوي بیا داغیر مسلم مالك کارخانه په یوه مسلمان شخص باندي پلوري . بیا هم مسلمانان په هغه ځای کښې اوه اته کاله په جماعت سره لمونځونه کوي . خو وروسته همدامسلمان مالك غواړي له همدي ځایه مسجد بل ځای ته بدل کړي اوپه دي ځمکه یوشخصي ځای جوړ کړي ایا داسي تصرف روا دي ؟

**ځواب** : که غیر مسلمان شخص دامسجد دثواب په نیت جوړ کړي وي . هغه وقف دي دمسلمان مالك لپاره هم دهغه ړنګول جواز نلري . هغه شرعي مسجد دي .

که دغیر مسلم وقف صحیح نه وو او دي مسلمان مالك هم اوه اته میاشتي هلته په لمونځ کولوځه نه ویل اوپټه خوله پاته وو . همدا پټ خولي ، دهغه رضا ښیي . نو اوس یي ورته ړنګول جواز نلري . هغه شرعي مسجد دي .

(احسن الفتاوی ج ٦ ص ۴۵۲ ).

( که چا په کارخانه کښې کوم ځای دلمانځه لپاره داسي بیل کړ لکه په کورونو کښې کوم ځای ، چوتره یا بل ځای . دمسجد نیت یي کړي نه وي . هغه دمالك په اختیار کښې ده . دااختیار لري چي هغه ځای دلمانځه لپاره پریږدي اویا مسجد بل ځای ودان کړي . (رفعت) .

**مسئله** : که غیر مسلمان دثواب په نیت مسجد جوړ کړي روا ده . خو که یهدي عمل سره کفار په مسلمانانو منت ږدي یا همداسي احتمال وي نو کار منل جائز نه دي .



(احسن الفتاوی ج ٦ ص ۴۴۰ ).

## که غیر مسلم دمسجد لپاره ځمکه وقف کړي .

**مسئله** : که غیر مسلم مسجد جوړ ول ښه کار بولي ، دهغه لپاره چنده ورکول یا ځمکه وقف کول صحیح دي . هلته دي مسجد جوړ کړي او هغه پیسي دي ورباندي ولګوي . په شامي کښې دغیر مسلم دوقف بحث موجود دي . دایي حاصل ده .

(فتاوی محمودیه ج ١٢ ص ٢٩٥ ).

## په دولتي مقبوضه ځمکه مسجد جوړول

**پوښتنه** : که کومه کورني دډیر وخت لپاره په یوه دولتي ځمکه قبضه ولري . خو دولت ته کلني کرایه ورکوي . خو دهغي مځکي یوه برخه دمسجد او ښوونځی لپاره وقف وکړي . حکومت ورباندي اعتراض کوي خودمسجد په نوم اوریدلو ورته اجازه ورکوي اودهغي ځمکي حدود ورته معلوموي . مسجد جوړ دي پنځه شپږ کاله پکښې لمونځونه کیږي . آیا دا شرعي مسجد دي ؟

**ځواب** : داټوله ځمکه ددولت په ملکیت کښې ده . دهغه چا په تصرف کښې چي ده دهغوئ مملوك نه ده . هغوي ي کرایه ورکوي . هغه ځمکه وقف کول مسجد یا ښوونځي ورباندي جوړول یي حق نه دي . خوکه ددولت له لوري ورته دمسجد اوښوونځی دجوړولو اجازه ورکړل شوي وه . بیا دي دولت ورځخه کرایه نه اخلي . تردي اجازي وروسته دي دمسجد اوښوونځي لپاره ځای په ګوته کړي . اوهلته دي ودان کړي .

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ١٣٤ ).

## دمسجد دځمکي بدلول

**پوښتنه** : که چا له مسجد څخه لري يوه ټوټه ځمکه وقف کړه او هغه شخص وفات شي . داچي داوقف شوي ځمکه له مسجد څخه لري ده . که همدا ځمکه په داسي ځمکه بدله شي چي مسجد ته نژدي وي . داسي بدلون شرعا جواز لري ؟

**ځواب** : که هغه چا چي داځمکي ي وقف کړي ده دبدلولو اجازه کړي وه . بدلول يي کومه ستونزه نه لر ي . که واقف په دي هکله کومه خبره کړي نه وه . نو له استبدال څخه دمتوليانو هدف څه دي ؟

که داځمکه عايدلري اومتوليان غواړي دعايد دزياتوالي لپاره يي بدله کړي نو داسي بدلو ن جواز نلري . که داخالي ځمکه اوس بي ګټي وه خو دمسجد نژدي والي له امله دمسجد په ګټه وه چي يا ورباندي پراخيده ،يا ورباندي ساتل کيده اوپه راتلونکي کي ورباندي داوداسه ځای يا دامام حجره جوړول پکښي مقصود وو نو داسي بدلون مجاز دي .

(فتاوی رحيميه ج ١٠ ص ٢٣٤ محموديه ج ١٨ ص ٢٥٢ ).

## مسجد ته دوقف شوي ځای پلورل

**مسئله** : کوم ځای چي مسجد ته وقف شوي وي دهغه پلورل دچا حق نه دي . که يي متولي خرڅ کړي بيع يي فسخ کيږي اوبيرته دوقف حيثيت پيدا کوي .

(فتاوی محموديه ج ١٥ ص ٣٠٢ ).

## په غصب شوي ځمکه مسجد جوړول

**مسئله** : دبل چا په ځمکه ، دهغه له اجازي پرته مسجد جوړول جائز نه دي . هلته لمونځ پکښي مکروه تحريمي دي . دبل په ځمکه پرته له اجازي دوکان جوړول اوکرايه يي مسجد ته ورکول هم ناروا ده ، که ځمکه دمسلمان وي که دغير مسلمان . ان داچي دغير مسلم په ځمکه کي هم دا تصرف لالويه ګناه ده .

(فتاوی محموديه ص ١٢٨ ج ٢ ).

## پرته له ضرورته دمسجد نړول

**مسئله** : کوم ځای چي دشرعي مسجد حيثيت ولري . پرته له احتياجه چي يا دتنګوالي يا زوړ والي عذر وي نور دهغه ړنګول ناروا دي .

که متولي ديوه دنياي غرض لپاره بل مسجد جوړوي او زوړ ورانوي . موخه پکښي خدايي نيت نه وي . هغه دضرار دمسجد په څير دي . خو که په حلاله شتمني ودان شوي وي . اووقف يي هم په شرعي ډول شوي وي لمونځ کول پکښي روا دي .

(فتاوی محموديه ج ٦ ص ٣٧٢ او دولسم ټوک ص ٢٨٠ ).

**مسئله** : که دضرورت په اساس بل مسجد جوړيږي اودځمکي مالك هم په خپله خوښه ورته ځمکه ورکوي هلته په منظم ډول لمونځ اوجماعت کيږي . دمالك ورباندي مالکانه واك نه وي نو هغه شرعي مسجد دي اودضرار دمسجد په حکم کښي نه دي .

(فتاوی محموديه ج ٦ ص ١٢٨ ).

## دمسجد ځمکه ، امام په خپل نوم کول

مسئله : کومه ځمکه چې وقف شوي وي . په هغه باندي دچا قبضه روا نه ده . بلکې غصب ده . که یې امام په نوم کړي ، لازما دي پرېږدي ، دمسجد په نوم دي کړي ، کنه داخرت په ورځ به ترې پوښتل کیږي . دهمداسي امام ، امامت تحریمي مکروه دي اوله امامت څخه دګوښه کولو وړ دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۱۱).

## دمسجد لپاره په وقف شوي ځمکه کښي ښوونځی یا هدیره جوړول

پوښتنه : یوچا دمسجد په نوم خپله یوه ټوټه ځمکه وبخښله . یو جامع مسجد یې وربانډي جوړ کړ زیاته برخه یې دصحن په ډول استعمالیده . که دهغه سړي چې همدا ځمکه یې وقف کړي ترمړیني وروسته ، دمړه شوي وارثان ، دمسجد متولي او یا نور لمونځ کوونکي هغه خالي برخه ښوونځي یا هدیري ته ورکړي داشرعا جواز لري ؟

ځواب : ناروا ده . دکوم څه لپاره چې ځمکه وقف شوي وي ، دهغه په خلاف یې استعمال ناروا دي . متولي اولمونځ کوونکو هیچا ته داحق نشته چې دوقف کوونکي دمقصد په خلاف یې دبل څه لپاره استعمال کړي .

(فتاوی محمودیه ج ۶ ص ۲۱۰).



## هغه ځمکه چې دمدرسي په نوم اخستله شوي ده مسجد ته یې وقف کول

مسئله : دمدرسي لپاره ځمکه اخستل هغه دده په ملکیت کښي ده . محض دمدرسي په نیت هغه نه وقف کیږي . که یې دمسجد په نوم وقف کړي لاغوره ده . داوقف کول یې حق دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۳۵).

## دمدرسي دودانۍ دپاسه دمسجد ودانول

پوښتنه : چا دمدرسي دودانۍ دپاسه مسجد جوړ کړ . دمحلي اوکلي خلګو شکایت درلود چې دمدرسي زده کوونکي شر اوشور کوي . ایا دامسجد شرعامسجد دي؟

ځواب : داشرعا مسجد نه دي ځکه لاندیني برخه یې مدرسه ده . دلته لمونځ کیږي خودمسجد دلمانځه ثواب نلري .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۸۹ )

## ترمسجد بهر ، په ځمکه دوکانونه جوړول

پوښتنه : مسجد ته نژدي دعامه مصلحت لپاره یوه ټوټه مځکه خالي پاته ده . هلته کوهي یا نورڅه دي ، مالك یې معلوم نه دي . په دي حالت کي دکلي دخلګو په اتفاق هلته دوکانونه جوړ وي اوپیسي یې دمسجد په ګټه استعمالوي . داجائز دي ؟

ځواب : دمسجد داسي ځمکه دي دامام اومؤذن دمعاش او اجوري په برخه کښي وکارول شي . که داسي کار مسجد ته زیان نه وي اودامام اومؤذن هم خوښه وي نوداسي جائز دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۲۲۰)

## دمسجد دګټي لپاره دوقف شوي ځمکه خرڅول

**مسئله** : کومه ځمکه چي دمسجد لپاره وقف شوي وي . دهغې دخرڅولو حق نشته . نه واقف ، نه متولي اونه دوقف کوونکي ورثي ته . خو کومه ځمکه چي دمسجد دمصالحواوګټې لپاره وقف شوي وي . دمسجد دودانولو لپاره دواقف یاورثي ، متولي اوکلیوالو په ګډه مشوره خرڅیدلاي شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۳۰.درمختار ج ۳ ص ۳۶۷ .مخ په حوالې)

## دمسجد په نوم دځمکي بدلول

**پوښتنه** : یوه ټوټه ځمکه دمسجد لپاره وقف ده خو له مسجد څخه لري ده . مسجد ته بي کومه ګټه نه رسیږي . یوه چاته ددي ځمکي ضرورت دي هغه داځمکه په دوه برابره زراعتي ځمکه بدلوي . ددي ځمکي عاید زیاتیږي آیا داسي بدلون روا دي . اودازیاته ځمکه خو به سود نه بلل کیږي ؟

**ځواب** : که ددي ځمکي مسجد ته ګټه نه رسیږي ، په بله ګټوره ځمکه یې بدلول جائز دي اودازیاته ځمکه ورکول سود نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۳۴۶).



## په دولتي ځمکه پرته له اجازي مسجد ودانول

**پوښتنه** :: دچا کور دسړك په غاړه دي . ترڅنګ یې یومیداني دي چي دولتي ځمکه ده . ورباندي دلمانځه لپاره یوه چوتره جوړه شوي ده ، لمونځونه ورباندي کیږي . داځای مسجد کول څرنګه دي ؟

**ځواب** : داچي همدغه ځمکه دحکومت ده ، حدود یې معلوم دي نو دمسجد جوړولو لپاره یې دحکومت اجازه اخستل ضرور دي . پرته له اجازي شرعي اوقانوني خطره پکښې ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱۰ ص ۱۹۷ ).

**مسئله** : په اوسني حالت ( چي پرته له اجازي دلمانځه ځای جوړ شوي دي ، له دي هڅي سره ،سره چي اجازه ترلاسه شي . ) ددي عبادت ځای دمسجد په څیر احترام ساتل ضرور دي . هیله ده دمسجد لمونځونو ثواب پکښې وي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۰ ص ۱۹۹ ).

**مسئله** : په غصب شوي ځمکه مسجد جوړول ترهغو صحیح نه دي ترڅو یې مالك اجازه ونکړي . که دحکومت پرکوم دفتر یا اداره قبضه ولګوي اوهلته مسجد جوړ کړي هم غصب ده .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۳۴ ).

**مسئله** : دغیر مسلم کس په ځمکه له اجازي پرته مسجد جوړول روانه دي . که ورباندي ودان شي دي غیر مسلم مالك ته داحق شته چي داودان شوي مسجد یا مدرسه رنګ کړي . که یې مسلمانان دهغوئ خپلول غواړي مالك ته دي بیه ورکړي اودهغه په خوښه دي تري واخلي .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۳۴ اونظام الفتاوی ج ۱ ص ۳۱۱ ).

# په ورانه ځمکه دمسجد ودانول

**پوښتنه** : داوبو دړند خوا کښې مخروبه ځمکه ده . که هلته څوك ورباندې چت جوړ کړي ، لمونځونه ورباندې کوي . له حکومت څخه يې هم دمسجد په نوم سند تر لاسه کړي ايا هغه شرعامسجد دي ؟

**ځواب** : که هغه ځمکه دچا ملکيت نه وي ، مخروبه او ددولت ملك وي ، دټولو په اجازه هلته اذانونه او دجماعت لمونځونه کيږي . ددولت کاغذ هم لري ، نو بيا دچا لپاره دهغې قبضه کول جائز نه دي . څوك چې دهغه ځای په مسجد جوړولو کښې خنډ پيدا کوي . هغه په غلط دي . هغسې دي نه کوي مسلمانان دي په هغه ځای باقاعده مسجد جوړ کړي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۱ ).

## دمسجد په ځمکه دمدرسې لپاره ودانۍ جوړول

**پوښتنه** : دمسجد په اړوند ځمکه ، تعمير جوړول اوورباندې دمسجد بودجه مصرف کول اوبيا پرته له عوض اوبدل څخه مدرسې ته سپارل روا دي ؟

**ځواب** : دمسجد په ځمکه دمسجد په روپوتعمير جوړول اوبيا پرته له بدل څخه مدرسې ته پرېښودل جائز نه دي . دمدرسې په روپيو دمسجد په ځمکه تعمير جوړول داسي کيږي چې په مشوره جوړ شي اومدرسه مسجد ته کرايه مقرره کړي . ځمکه به دمسجد وي او تعمير به دمدرسې او مدرسه به دځمکې کرايه مسجد ته ورکوي .
يا داسي چې تعمير هم دمسجد په روپيو جوړشي . مدرسې ته په کرايه ورکړل شي . داهم جواز لري .

(فتاوی محمودیه ج ۴ ص ۱۷۷ ).



# له کور څخه مسجد جوړول

**پوښتنه** : چا په محکمه کښې دخلګو په وړاندې اقرار وکړ چې تردې وروسته دې عام مسلمانان زما په کور کښې تل پنځه وخته لمونځ په جماعت سره کوي . زما ميرمن چې ترڅو ژوندي وي دلته به هستوګنه کوي . نو ر ټول کور به مسلمانانو ته پاته کيږي . عامو مسلمانانو پکښې لمونځونه کول . خو دده تر مړيني وروسته دهغه ميرمن او نور خپلوان دلمانځه لپاره خنډ جوړ وي . خپل کورونه جوړ وي اوهغه ځای قبضه کوي . حکم يې څه دي ؟

**ځواب** : که هغه شخص دروغتيا په حالت خپل کور مسجد کړي وي . لاره يې بيله کړې وي . عامو خلګو ته يې اجازه ورکړې وي اوهغوئ منظم اذانونه اودجماعت لمونځونه کړي وي نو هغه شرعا مسجد دي . اوس يې دميرمنې يانورو خپلوانو حق پکښې نشته . که يې دعوه وکړه هغه لغو اوباطله ده .
که دمړيني دوخت په ناروغي کښې يې هغه مسجد کړي وي نو هغه دوصيت دحکم په اساس ، دريمه برخه يې مسجد اودوه برخي يې دوارثانو تراجازې پورې اړه لري .
(فتاوی محمودیه ج ۷ ص ۱۲۴ دعالمگیري ج ۴ ص ۴۲۸ مخ په حواله ).

**مسئله** : مسجد دچا په ملکيت کښې نه دي . داچې کليوال مسجد خپل ملکيت بولي ، په دي خبره تغير پکښې نه راځي ، لمونځ پکښې صحيح اود مسجد ثواب ورته رسيږي .
(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۴۹ درد المحتار ج ۳ ص ۵۱۰ په حواله ).

## چيرې چي دمالک په اجازه اذان او دجماعت لمونځ کيږي ، هغه مسجد دي .

**پوښتنه** : که دچا په اجازه دهغه په ځمکه کښي خلګو په خپله مرسته ( چنده ) مسجد ودان کړ څو کلونه يي هلته پکښي لمونځونه کول . خو وروسته هغه سړی ووېل : زه داځمکه نه وقف کوم ،که څوك پکښي لمونځونه کوي اوکه يي نه کوي زه يي بندوم . په دي صورت کښي لمونځ کوونکي پکښي دلمونځ کولو حق لري اوکه بنديدلای شي؟

**ځواب** : داچي دهغه سړي په اجازه مسجد جوړ شوي دي . لمونځونه پکښي په جماعت سره شوي دي . هغه سړی هم خلګ تري منع کړي نه دي . نو هغه شرعي مسجد دي ، اوس حق نلري چي څوك له لمونځ کولو پکښي منع کړي .

(فتاوی محموديه ج ٦ ص ١٧٠ دردالمحتارج ١ ٦٨٢ مخ په حواله ).

**مسئله** : که څوك ځمکه وقف کړي په ژبني ( شفاهتي ډول داخبره وکړي ، خلکو ته هلته دلمانځه کولو اجازه ورکړي . خلګ هم پکښي اذان اودجماعت لمونځونه وکړي . له خپل ملکيت څخه يي لاره بيله کړي نو هغه په اتفاق سره مسجد بلل کيږي . که څه هم ليکلي اقرار ته يي وار ورغلي نه وي . هلته دنورو مسجدونو په ډول لمونځ صحيح دي . دوقف کوونکي وارثانو ته هيڅ داسي حق نشته چي هغه دوقف داحکامو خلاف وي اودهغه دوراثت په ډول دعوه کول غلط ده .

(فتاوی محموديه ج ١٠ ص ١٩٣ ).

**مسئله** : دمسجد جوړولو لپاره داخبري ضروري دي :



١ : وقف کوونکي به دځمکي صحيح مالك وي . که هلته تعمير وي که خالي وي . دوقف کولو شرعي اختيار به ورسره وي .

٢ : وقف به له خپل ملکيت څخه داسي بيلوي چي دوقف کوونکي يا بل شخص به ورباندي حق نه وي .

٣ : وقف دي متولي ته سپاري ، يا دي دوقف کوونکي په اجازه هلته دجماعت لمونځ اداکيږي . که داخبري تحقيق ومومي نو هغه ځمکه يا تعمير دمسجد حکم لري . دمسجد کيدلو لپاره دوقف کوونکي نيت معتبر دي . که په نيت کښي صراحت موجود وو خوکوم مشکل نشته . که صراحت پکښي نه وو بيا به قرائينو او شواهدو ته کتل کيږي چي څرنګوالي يي څرګند کړي .

(کفايت المفتي ج ٣ ص ١٥٢ ).

## که دمسجد نقشه غير مسلم چمتو کړه .

**مسئله** : کوم کارونه چي په مسجدونو پوري اړه لري ، غوره داده چي هغه مسلمانان وکړي په تيره هله چي که غيرمسلم کوم خدمت وکړي اوبيا په مسلمانانو منت ږدي . يا کوم ديني فساد پيښوي ...

. خو پوښتنه دلته ده چي که يوه مسلمان انجنر تر توان زياته حق الزحمه غوښته او غير مسلم په مناسبه اجوره کار کاوو . بيا دي هغه کار وکړي هغه به دملازم په توګه کار کوي اوبيا به په مسلمانانو څه احسان نه بولي نو نقشه کښل او نور کارونه يي کولای شي .

(فتاوی رحيميه ج ١٠ ص ٢٣٢ دامداد الفتاوی ج ٢ ص ٢٩٠ په حواله ).

## که غیر مسلم دمسجد اساس کښېږدي

**مسئله** : غیر مسلم که بناوي . انجنر وي یا دسمت او لوري دپېژندلو ماهر وي یا دابسلام دمراسمو داعزاز نیت یې وي ، که هغه دمسجد اساس کښېږدي صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۲ ).

## دمسجد داساس دایښودلو دوخت دعاء

ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم ( فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۸۲ )

محمد رفعت قاسمي (دکتاب مؤلف) وایي : مناسب دادي چې یو متقي مسلمان دمسجد اساس کښېږدي یعني دمسجد دکار پیل دې داسې څوك وکړي چې اهل وي او دابراهیم ﷺ هغه قرآني دعا چې دکعبې دودانولو په وخت کښې یې ویلې وه وواېي .

## ایا دمسجد داساس ایښودل ، دمسجدحکم لري

**پوښتنه** : دیوه مسجد بشپړه ودانۍ جوړول مسجد بلل کیږي اوکه یوازې دهغه اساس اېښودل کافي دي ؟

که یوازې اساس ایښودل کافي وي ، نوهغه مسجد چې اساس یې ایښودل شوی خو جوړشوی نه دی . هلته او دس کول ، غسل کول ، دحیواناتو څرول دکارگرانو سگرت څکول څرنگه دي ؟

**ځواب** : هغه ځمکه چې ترجوړولو وړاندې پکښې اذان اودجماعت لمونځونه کیږي اونیت هم داوي چې دابه پسې مسجد کوو ، هغه مسجد

دي دنورو مسجدونو په څیر یې احترام لازم دي کوم شیان چې په مسجد کښې منع دي هغه په دې ځمکه کښې منع دي .

(عالمگیري ج ۳ ص ۳۳۸ ).

که همداسې نه وو اونیت یې کړي وو چې دتعمیر تر بشپړ کیدلو وروسته به پکښې اذان اوجماعت کیږي . نو بیا دودانۍ تر بشپړ کیدلو وروسته دمسجد حکم لري .

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۹۸ ستاسې مسائل ج ۳ ص ۱۵۵ ).

## دمسجد حدود معلومول

په ځیني مسجدونو کښې دنورو اړتیا وو ځای له مسجدڅخه بیل وي . هغه کومه ستونزه نلري ، دمسجد حدود پیژندل کیږي . خو په ځینو مسجدونو کښې ورسره لگیدلي وي . دمسجد حد ترهغه نه معلومیږي ترڅو یې وقف کوونکي اودمسجد جوړونکي ورته ونه ښیي .

څوك چې په مسجد کښې داعتکاف اراده لري ترهر څه وړاندې ورته ضروري خبره داده چې دمسجد حدود وپیژني له مسجد جوړونکي یا متولي څخه یې پوښتنه وکړي . دمسجد اهل هم باید دمسجد حدود وپیژني ، نقشه ولري یا لږ ترلږه اعتکاف په پیل کښې معتکفین سره کښیني او دمسجد حدود ځان ته معلوم کړي .

په ځیني مسجدونو کښې داودس کولو ځای له مسجد سره لگیدلي وي ، هلته خلگ داوداسه ځای هم مسجد گڼي ، خو داودس کولو ځای مسجد نه دي . معتکف دې له عذر څخه پرته هلته نه ځي کنه اعتکاف یې خرابیږي . دمسجد اود اوداسه دځای حد اواندازه باید معلوم وي . دمسجد دورتلو دلاري زیني هم دمسجد برخه نه ده .

معتکف ته له شرعي ضرورت څخه پرته ، هلته تلل ښه نه دي . په ځينې مسجدونو کښې داوبو ډنډونه (حوضونه) جوړ شوي دي ، هغه هم له مسجد څخه بهر ځای دي . دمسجد او حوض حد معلومول هم ضروري خبره ده . ځيني مسجدونه ترڅنګ دجنازي دلمانځه لپاره ځايونه لري ، هغه هم دمسجد برخه نه ده دمعتکف ورتلل ورته جواز نه لري .

ځيني مسجدونه ترڅنګ دامام لپاره خوني لري هغه هم دمسجد په حکم کښې نه ده اوپه ځينو کښې نوري خوني دي چې دامام دهستوګنې لپاره نه وي خو دهغه کارونو لپاره وي . هغه هم که د مسجد باندي له لوري دمسجد لپاره مشخص شوي نه وي . دمسجد حکم نلري اومعتکف ته دي ورتلل ښه نه دي .

په ځينو مسجدونو کښې دمسجد ترڅنګ دماشومانو دزده کړې لپاره خوني وي ، هغه هم که دمسجد په نيت نه وي جوړې شوي دمسجد حکم نلري . هغې ته هم دمعتکف ورتلل جواز نلري . ځيني مسجدونه دسامان دايښودلو لپاره بيله خونه لري ، هغه هم که دمسجد په نيت جوړه شوي نه وي ، مسجد نه دي معتکف دي هلته هم نه ځي .

له دي بيان څخه معلوميږي چې معتکف ته څومره لازمي ده چې دمسجد حدود وپيژني . اوبيا په اعتکاف کښې کښيني . داعتکاف په موده کښې له شرعي عذر څخه پرته دمسجد له حدودو څخه وتل ورته ښه نه دي ، کنه اعتکاف يې ماتيږي .

(احکام اعتکاف ص ۳۵ مولانا محمد تقي عثماني).

## دکليوالو دنده

۱:- دکليوالو دنده ده چې وړاندې لاتحقيق وکړي چې زموږ په مسجد کښې څوک په اعتکاف کښيني که نه ؟ که څوک نه کښيناست بيا دې فکر وکړي چې يوڅوک کښينوي .

۲:- چاته اجوره ورکول اوپه اعتکاف کښې کښينول جواز نلري . ځکه په عبادت کښې اجوره ورکول يا اجوره اخستل دواړه ناروا دي .

۳:- که کليوال دکوم عذر له امله په اعتکاف کښې کښيناستلای نه شواي دبل کلي يو کس دي ، دي ته وهڅوي څو ددوئ په کلي کښې په اعتکاف کښې کښيني . انشاء الله دهمدي کلي دخلګو داسنت ادا کيدلای شي .

(فتاوی دارالعلوم ج ۷ ص ۵۱۲).

داعتکاف ستر رکن دادي چې معتکف ، داعتکاف په موده کښې دمسجد په حدودو کښې دننه پاته شي . له ضروري اړتيا وو پرته ديو شيبې لپاره هم تري لاړ نشي . که پرته له شرعي عذر څخه ووزي اعتکاف يې ماتيږي .

(احکام اعتکاف ص ۳۳ مولانا محمد تقي عثماني).

## دمسجد دحدودو مطلب

ډير خلګ دمسجد دحدودو په مطلب نه پوهيږي . له همدي امله اعتکاف ماتيږي . له همدي امله داورته لازمه ده چې دمسجد حدود ځان ته معلوم کړي اوپه مطلب يې پوه شي .

په عامه محاوره کښې خو دمسجد ټوله احاطه مسجد بلل کيږي . خو په شرعي اعتبار سره دمسجدټوله احاطه مسجد نه دي بلکي هغه برخه

مسجد دي چي باني ( جوړوونکي ) يي مسجد بللي دي اودمسجد په نوم
يي وقف کړي دي.
ددي خبري معني داده چي دمسجد په نوم وقف کول بيله خبره ده
اودمسجد داړتيا وو لپاره ځمکه وقف کول بيله خبره ده . شرعي مسجد
هغه دي چي يوازي دلمانځه کولو لپاره جوړ شوي وي. په هر مسجد کښې
داسي ځايونه شته چي مسجد نه دي خودمسجد داړتيا وو لپاره دي
هغوي وقف ځايونه دي خومسجد نه دي لکه د اودس ځاى ، دغسل ځاى،
دجنازي دلمانځه ځاى ، دامام خونه ، دسامان دايښودلو خونه ، داوبو
دتودولو ځاى ټول هغه ځايونه دي چي دمسجد حکم ورباندي نه جاري
کيږي . دجنابت په حال کښې دي ځايونو ته تلاي شي . دمعتکف ورتلل
پرته له ضرورت څخه جواز نلري . که پرته له عذر څخه هلته ديوي شيبي
لپاره هم ځي اعتکاف ماتيږي .

(احکام اعتکاف محمد تقی عثماني ص٢٣)

مسئله : دمسجد حد هغه برخه ده چي دلمانځه لپاره ټاکلي شوي ده. هلته
دجنوب سړي تلل پرته له غسل څخه منع ده . داوداسه ځاى له
وتلي دي.

(

## دسړک دپراخولو لپاره

پوښتنه : دسړك خواکښې مسجد دي
کار سره نيم مسجد ورانيږي . خو
کور دي . هغه وايي : که تاسو مس
دشمال لورته ځمکه درکرم مس
ده چي خپله طرحه څرنګه کړي



ځواب : يوځل چي يوځاى مسجد جوړ شو هغه ټول عمر مسجد دي . هغه
خرخول ، بدلول،بل ځاى و دوکان ، مسافر خانه ، جوړول يا مړى ښخول
هرڅه پکښې ناروا دي .خو دپورتني پوښتني په موضوع کښې که دولت
هغه په زور سره په سړك کښې راولي نه دي ورڅخه پيسي اخستلي کيږي
اونه ورسره جګړه کيږي . نه دي احساسات راپارول کيږي اونه دي له غير
مسلم شتمن سړى سره دتبادلي خبره کيږي . که دولت دخپلي خوښي
مطابق کوم ځاى ونيسي . غير مسلم دمسجد دپراخولو لپاره دځمکي
ورکول خير ګڼي او ورکوي يي ، هغه دي په مسجد کښې شامله شي
داړتيا په صورت کښې يي همدا صورت مناسب دي .

(فتاوى محموديه ج ١٨ ص ١٢٧ باب احکام مساجد ).

مسئله : ترممکن حده ديهڅه وشي چي مسجد په خپل حال پاته شي .
خوندي وي له بي ادبي وساتل شي . که يي سامان ضايع کيده بل مسجد
ته دي واستول شي . که يي ودانى ړنګيدله ، لوازم دي بل مسجد ته
داځمکه دي له بي احترامي څخه خوندي وساتله شي . که
که هم نه پريښودله ، هغه دي وقف کوونکي يا يي وارثان يا
ال دګنجائش، ورت کښې ورباندي خرڅه کړي . خو ددي لپاره
نشي اوبل حکومت يا بل څوك بده ګټه تري
زيان دغم وړ وي وګالل شي اودپيسو له
کښې داسي هم جواز شته چي

ج ١ ص ١٧۴ شامي ج ٣ ص ٥١٣ ، ٥١٩
١٠).

## په سړک دچت درولو حکم

پوښتنه : دمسجددتنګوالي له امله لمونځ کوونکي بهر په سړك باندې چت تړي . لمونځونه کوي . که دسړك دمسئولينو اجازه وي ، خلګو ته ستونزه نه وي ځکه چت ۱۲،۱۵ فوټه تر سړك لوړ وي نو آيا لمونځ ورباندې جائز دي اودجماعت دلمانځه ثواب ورباندې مرتب دي ؟

ځواب : په سړك چت تړل ، ورباندې لمونځ کول شرعا جائز دي که دمسجد له صحن سره هم چت متصل وي اودمسجد صفونه ترهغه ځايه رسيدلي وي نو دجماعت دلمانځه ثواب لري خو داچت دشرعي مسجد حکم نلري ځکه مسجد ټول لاندې باندې وقف وي خو دلته ترچت دلاندې سړك ددولت ملکيت دي .

(فتاوى محموديه ج ۷ ص ۱۸۳ ).

## د دوه پوړيزه مسجد حکم

که دوه منزله مسجد جوړ شي لاندينې برخه يې بې کاره پاته کيږي معمولا تودوخه بهانه کوي خلګ په پاس مسجد کښې لمونځونه کوي . خواصل مسجد دلاندې دي . اوله ضرورت خخه پرته پورته دمسجد په چت باندې ګرځيدل هم مکروه دي نو په داسې حالاتو کښې دوه پوړيزه مسجد مناسب نه دي .

که تل دمسجد په لاندينۍ برخه کښې لمونځونه کيږي . دځاى دتنګوالي له امله مقتديان پورته هم ولاړ وي نو شرعا جائز دي چې دسهولت لپاره دوهم پوړ جوړ شي اوبيا په چت باندې بل چت جوړول ممانعت نلري .

(فتاوى محموديه ج ۷ ص ۱۸۴ دردالمحتار ج ۱ ص ۲۸۲ په حواله).



مسئله : دمسجد په بام هغه وخت لمونځ مکروه دي چې په بام باندې کليوالو دلمانځه لپاره ځاى جوړ کړي نه وي ، يوازې هغه دبام صفت ولري خو که دوهم پوړ ودان کړي بيا دبام حکم نلري .

(امداد الاحکام ج ۱ ص ۴۴۰ ).

## دمسجد بدلول

مسئله : له خپله لوري دې ځوك دمسجد دځاى دبدلولو يا خرڅولو خبره نه کوي خو که نور خلګ ځمکه نه پريږدي اوبل ځاى مناسب ځمکه يابى بيغه ورکوي نو مجبورا دې هغه ځاى پريږدي اوبل ځاى دې مسجد ودان کړي .

(فتاوى محموديه ج ۱۲ ص ۲۷۵ ).

## دمسجد پښتولان ( ګاډر) دهمسايه په ديوال ايښودل

مسئله : مسجد دخداى تعالى کور دي . په هغه دبل چا ځمکه پرته له اجازې نيول يا دبل چا په ديوال دمسجد پښتول ، ګاډر ، يا لينټر يا بل څه ايښودل يا داسې کړکې پريښودل چې دبل چا دکور دپردې په خلاف وي داهرڅه شرعا ناروا دي . داحق تلفي ده . ګناه ده . که مسجد ته دکومې ځمکې اړتيا وه په بيه دې واخلي . که دکوم ديوال يوه برخه په مسجد کښې راتله بيه دې ورکړي . که په کړکې ورکولو دبل چا کور ښکاره کيده ، بله چاره دې وکړي اوکه داسې حق تلفي شوي وي دهغه دې معذرت وغواړي . کنه په اخرت کښې يې له پوښتلو خلاصون نشته .

(فتاوى محموديه ج ۲ ص ۲۷۲ )

مسئله : دمسجد ديوال دې له کومې ودانۍ يا دوکان سره مشترك نه وي . که څه هم هغه ودانۍ يا دوکان دمسجد لپاره وقف شوي وي .

(فتاوى رحيميه ج ۲ ص ۱۸۰ ).

مسئله : که څوك مځکه واخلي اووقف يي نکړي . هغه دمسجد نه ده . په
هغي کښي دمالك دتصرف حق شته . خو که مسجد تنگ وو او پراخولو ته
يي اړتيا وه . له مالك څخه دي په بيه واخلي هغه هم دمالك په رضايت .
(فتاوى محموديه ج ١٠ ص ١٧٨ ددرمختار ج ٣ ص ٣٢٧ په حواله ) ( يعني په زور سره
دي نه تري اخلي چي جائز نه ده _ محمدرفعت قاسمي ) .

## دمسجد په ديوال نقشي جوړول

مسئله : دقبلي له لوري پرته په نورو ديوالونو نقش جوړول صحيح دي خو
دوقف له مال څخه جائز نه دي . زيات مصرف کول هلته هم مکروه ده .
(فتاوى محموديه ج ٢ ص ١٧٣ دکبيري ص ٥٧١ او مجمع الانهر ج١ ص ١٢٧ او بحر الرائق ج ٢ ص ٣٧ په حواله) .

مسئله : ددرمختار اودشامي دلومړي ټوک د٤٤٢له عبارت څخه
معلوميږي چي له محراب څخه پرته په نورو ځايونو نقش جوړول په حلال
مال باندي روا ده . خو دقبلي لورته داسي انځورونه کښل چي دلمونځ
کوونکو توجه ورته اوړي مکروه دي . هغه لورته باريك انځورونه هم
مکروه دي اودوقف له مال څخه خو داټول مکروه دي .
هغه شيان چي دتعمير دکلکوالي لپاره ضروري وي . هغه داړتيا وړ
مصرف دوقف له مال څخه هم جائز دي . نور دښکلا لپاره دوقف له مال
څخه حرام دي . که متولي دوقف شتمني په زينتي شيانو کښي ولگوي
هغه ددي مال ضامن دي . که دوقف مال زيات وو اودمسجد دوداني
اړتياورته نه وه . ضر وريات يي پوره وو اوداشتمني بيخي زياته وه . له
متولي سره داويره وه چي داشتمني ساتل کيدلاي نشي نور ظالمان
ورباندي تيري کوي اوهغه په خپل کار کښي لگولي په داسي جبري وخت
کښي دزياتو پيسو مصرف دښکلا په شيانو کښي هم جائز دي .



دمسجد په ديوالونو داسي هنداري لگول چي څهره پکښي ښکاره کيږي
خو مقصد پکښي دمسجد ښکلا وي . که تصوير پکښي ښکاره کيده داله
تصوير نمانځنو سره ورته والي دي . په داسي مسجد کښي چي همداسي
هنداري پکښي لگيدلي لمونځ صحيح دي . لمونځ کوونکي دي ټيټ
گوري ترڅو ورته خشوع پيداشي . که هغه لورته گوري خشوع يي کميږي
او لمونځ يي مکروه دي .
(فتاوى محموديه ج ٢ ص ١٨٠ ، فتاوى رحيميه ج ٢ ص ١٧٠ ، دابن ماجه ج١ ص ٢٤٥ په حواله ،
شامي ج١ ص ٢٠٧ ، کفايت المفتي ج ٣ ص ١٤٠ ، کتاب الفقه ج١ ص ٤٥٧ او احسن الفتاوى ج ٢ ص ٤٥٩)

## که پښي ( پايزار ) په پښو وي اومسجد ته ننوزي

مسئله : که ديوه مسجد ودانى ونړول شي اوبل تعمير ورباندي ودانوي .
دهمدي مسجد دځاى دومره احترام ضرور دي لکه دجوړ مسجد . پښي
،بوټونه يا څپلکي که نوي يا پاکي وي کومه ستونزه نشته خو دادب
غوښتنه داده چي بوټونه وکاږي .
(فتاوى رحيميه ج ٢ ص ١١١ اوآپ کى مسائل ج ٣ ص ١٣٨ ) .
مسئله : په ځينيو مسجدونو کښي دبوټونو دايښودلو لپاره کومه بکسه
جوړه شوي نه وي . که بوټونه پاك اووچ وي نومسجد نه ناولي کوي .
(آپ کى مسائل ج ٣ ص ١٣٨ کفايت المفتي ص ١٥٠ ) .

## دمسجد دجوړولو په وخت کښې له بوټونو سره پکښې گرځېدل

يوازې په نيت اوددالان اوميدانې په معلومولو دمسجد احکام په کوم ځاى نه جاري کيږي بلکې په اذان اوجماعت سره مسجد والي ثابتيږي او بيا دمسجد احکام ورباندې جاري کيږي .

دتعمير په وخت کښې دمعمار اومزدور راتلل يوحکم لري اوکه اذان او جماعت پکښې کيږي بل حکم لري . کوم ځاى چې دلمانځه اوجماعت له پاره غوره کيږي اودجماعت لمونځ هم پکښې کيږي دجوړ مسجد احکام ورباندې جاري کيږي . هلته بوټونه په پښو کول اوپکښې گرځېدل داحترام خلاف خبره ده .

(فتاوى محموديه ج ١٨ ص ٢٢٧ (دعالمگيري ج ٤ ص ٩٣ په حواله).

## دمسجد دجوړولو په وخت کښې هلته چلم څکول

**پوښتنه** : دمسجد دجوړولو په وخت کښې دمسجد په غولي کښې چلم څکول څرنگه دي ؟

**ځواب** : په مسجد کښې حقه (چلم) څکول ناجائز دي .

(فتاوى محموديه ج ١٥ ص ٢٤١).

## دمسجد مينار به څومره لوړ وي ؟

**مسئله** : دمينار په هکله په شريعت کښې حد ټاکل شوي نه دي خودمسجد جوړښت دې داسې وي چې کتونکي وپوهيږي چې دامسجد دي . په عام ډول دوه ميناروته معمول دي . څوک څلور او څوک لازيات ميناروته جوړوي . خو داشرعي امر نه دي اونه پکښې ممانعت راغلي دي



خوبې موجبه دپيسو مصرف کول دي په تيره دوقف پيسې چې خورا احتياط پکښې لازم دي .

(فتاوى محموديه ج ١٥ ص ١٢٥).

گنبده ، مينار اومحراب که ضرورت ورته وو شرعا جواز لري .

(محموديه ج ١٠ ص ١٥٩).

## له مسجد سره شخصي کور جوړول

**پوښتنه** : دمسجد شايا اړخ ته دچاځمکه ده . هغه په خپله ځمکه کښې ودانۍ جوړوي . که څه هم هغه ځمکه دده خپل ملکيت ده اوهغه دمسجد له ديوال څخه خپله ودانۍ پيل کوي خو په قانون کښې يا دبام داوبو لاره بنده شي . خوهغه شخص دومره ځمکه نه پريږدي ، آيا په قانوني توگه هغه دحکومت په زور ورڅخه اخستلاى شي ؟

**ځواب** : دمسجددبام داوبو لاره پريښودل دمسجد حق دي نو دمسجد دخونديتوب لپاره دهغه شخص دډي کار مخنيوي ضرور دي .

## دمسجد کبير تعريف

**مسئله** : څلويښت ذراع (نيم گز) اوږد څلويښت ذراع سور ور . په بل روايت شپيته ذراع اوږداوشپيته ذراع سورو ر مسجد . مسجد کبير بلل کيږي .

(فتاوى محموديه ج ١٠ ص ١٢٨ ددرالمختار ج ١ ص ٢٠٢ په حواله).

**مسئله** : که له څلويښت په څلويښت شرعي گز څخه مسجد وړوکي وو ، هغه کوچني مسجد (مسجد صغير) بلل کيږي .

(فتاوى محموديه ج ١٥ ص ١٨٢ امداد الاحکام ج ١ ص ٤٤٤).

## په یوه مسجد باندي د ((مسجد حرم)) نوم ایښودل

پوښتنه : داچي دانوم دکعبي دی نو مسجد په همدي یادولای شو ؟

ځواب : غلام احمد قادیاني داغولونه کړي وه چي خپل نوم یي دنبي ﷺ نوم غوره کړي وو ، دخپلي میرمني نوم ام المؤمنین ، دمسجد نوم دسرور دو عالم مسجد ، هدیره یي دمدیني هدیره بللي وو . په دي توګه یي خپله ډله دخاتم النبین له امت څخه دګوښه کولو هڅه کوله ...

څوك دي دخپل مسجد نوم مسجد حرم نه ږدي چي مسلمانان وربانديونه غولیږي ، که څه هم مسلمانان داتلبیس نه کوي خوبیا هم له مغالطي او دوکي څخه لیري کیدل ضروري دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۷ ).

## دمسجد غرباء نوم ایښودل

مسئله : دپیژندګلوي لپاره داسي نوم ایښودل کیدلای شي ، په دي چي دلته اکثره بي وزله خلګ دي . یا بي وزله خلګو دامسجد جوړ کړي دي یا دبي وزله خلګو مسجد دي . نو داسي نوم ایښودل څه شرعي بدوالي نه لري . داسي نوم ایښودل کیدلای شي .

(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۹۲ ).

## په ډبره کښي نوم لیکل او په مسجد کښي ایښودل

پوښتنه : که څوك مسجدجوړ کړي اوبیا په یوه ډبره خپل نوم وکندي په مسجد کښي یي کښیږدي ، جواز لري ؟

ځواب : دمسجد دودانولو دثواب دترلاسه کولو لپاره که دخلګو ددعاء په هیله په ډبره خپل نوم کاږي اویا ددي لپاره چي نورخلګ هم تشویق



شي نو دنوم لیکل صحیح دي اوکه دشهرت لپاره نوم کندل کیږي صحیح نه ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۵۱۴ ).

## که یوکس یوازي خپل نوم په ډبره لیکي .

پوښتنه : یوجامع مسجد جوړیږي . خلګ ورسره مرسته کوي خو یوشخص ته نورو زیاته هڅه کوي ، مرسته ډیره راغونډوي اونور کارونه هم ډیر کوي او همداشخص په ډبره باندي دمسجد دتاسیس نیټه اوخپل نوم لیکي دمسجد په دیوال کښي یي ږدي خو نور خلګ په دي کارسره ناخوښه کیږي ، څرنګه دادډبره دهغه شخص له نوم سره هلته نصب کیدل جواز لري ؟

ځواب : که داشخص دمسجد دودانولو دکار سرپرست اومشرنومول شوي وي بیا داسي عبارت په ډبره کاږي چي دامسجد دفلاني تر نظارت اوڅارني لاندي ودان شو نو شرعا کومه ستونزه نلري ، خو که هغه شخص په خپله دامطالبه کوي چي زما نوم دي ولیکل شي . دااخلاص خلاف خبره ده . له دي څخه ښکاري چي هغه خپل شهرت غواړي اوداشهرت غوښتل یوغلط غرض دي . ثواب ختموي . په دنیاکښي خو به یي نوم اوچت شي خو په اخرت کښي به دخالص عمل له ثواب څخه بي برخي وي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۴۲ ).

## دمسجدپه میداني کښې تر ودانولو وروسته دکوهي کندل

مسئله : کوم ځای چې دلمانځه کولو لپاره وقف شوي وي . هغه ځای په مستقله توګه دبل څه لپاره استعمالول دواقف دموخې خلاف خبره ده . هغه ځای تل مسجد پاته کیږي احترام ساتل يې ضروري خبره ده . نو که په دغه ځای ترتعمیر اودواقف ترمړینې وروسته څاه کندله کیږي . نو دتل لپاره له لمانځه کولو پرته پاته شوه حال داچې هغه دلمانځه لپاره ځانګړي شوي وه . هلته داوبو دوړلو لپاره هرپاك اوناولي ورځي ، په عامه څاه کښې جار اوجنجال وي . لوښي ناپاکه وي ... داهرڅه دمسجد داحترام خلاف اومنع دي . ورسره دمسجد ساحه هم تنګیږي .

(فتاوی محمودیه ج۱ ص۵۰۲ ).

## دمسجد تر ودانولو وروسته تري لاندي خوني جوړول

مسئله : دمسجد دودانولو په وخت تري لاندي کوټي (زیرخاني ) جوړي شوي نه وي . دمسجد دوداني تربشپړه کیدلو وروسته یي جوړول جواز نلري ؟

( فتاوی محمودیه ج۱ ص۲۱۹ ددرمختار ج ۳ ص۵۷۲ په حواله او طحطاوي ج ۲ ص ۵۳۷

مسئله : که دمسجد دړنګیدلو احتمال وو ، هغه یي دبیا ودانولو په نیت رنګ کړ کوم ځای چې دلمانځه لپاره ځانګري شوي دي هغه مسجد دي . اوس که تري لاندي دوکانونه جوړوي اوکرایه ورباندي اخلي داکار جواز نلري . دمسجد داحترام خلاف خبره ده . دوکاندار به خپل دپیرلو اوپلورلو کار کوي اوداپه مسجد کښې جواز نلري اوکرایه یي مسجد ته ورکول هم جواز نلري .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص۱۹۰ ) .



مسئله : که دوهم پوړ مسجد کړي اولاندیني پوړ دوکانونه کړي پورته لمونځ کیږي او کښته بازاري کاروبار ، دادمسجد داحترام خلاف خبره ده . پاس اوکښته ټول مسجد دي ، کومه برخه یي دکرایه اخستلو لپاره ځانګړي کول جواز نلري .

(فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص۲۱۵ ).

مسئله : دځمکي کومه برخه چي دمسجد لپاره ځانګړي او وقف شي یعني دلمانځه لپاره وټاکله شي پورته اوکښته ( له تحت الثری ترثریا ) ټول مسجد ګرځي ، دبنده حق ورڅخه غوڅیږي ، دلاندي دوکان پاس مسجد صحیح نه دي . لاندني برخه هم مسجد ده هلته خرید اوفروخت اودهغوئ خبري هرڅه منع دي دمسجد احترام نه ساتل کیږي . پاك اوناولي هریو هلته ورځي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص۱۲۲ ).

## ترمسجد لاندي زیرخانه اوپورته صالون

پوښتنه : پخواني مسجد ددي لپاره ړنګوي چي نوي ودان کړي . په نوي وداني کښې ترمسجد لاندي زیرخاني جوړوي اودپاسه داسي صالون چي هلته دواده ، عقیقي اونور مراسم سرته رسوي آن دمسجد دعاید دزیاتوالي لپاره به ورباندي کرایه اخلي . آیا داجواز لري .

ځواب : چیري چي مسجد جوړیږي دهغه لاندي باندي ټول مسجد دي . دواړه ځایه داسي کار ناروا ده کوم چي دمسجد دحرمت منافي وي . دمسجد پورته اوکښته برخه داحکم لري چي دبنده له تصرف څخه وزي . هال (صالون ) جوړول دامعني لري چي ټول اړوند خلګ به دهغه داستعمال حق لري . په دي کښې به داسي کارونه هم وي چي له هغوئ څخه دمسجد ... لازمي دی نو ځکه ورته اجازه نشته زیرخانه دمسجد داروند

لوازمو داینبودلو ځای دي څه ستونزه نلري . ځکه دمسجد داحترام
ضدکار نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۲۲۹ ).

مسئله : که دمسجد دپاسه دپېړي اړتیاله مخې مدرسې ته ځای ورکړي
جواز لري . خوداهم هغه وخت چې دمسجد دجوړولو په وخت کښې یې
دانیت کړي وي چې ترمسجد لاندې یادپاسه به مدرسه ودانوي .خوکه یې
لومړي دمسجددمعلومه کړي وي .دمدرسې اراده یې لاندې یاباندې نه
وي کړي .او وروسته داسې ووایي چې په مسجد دپاسه یا لاندې دي
مدرسه وي داسې جواز نلري .

(احسن المسائل ج ٦ ص ٤٤٣ عالمګیري ج ۲ ص ٤٥٥ ).

## دلاندې مدرسه پاس مسجد

مسئله : دشرعي مسجد حال دادی چې لاندې باندې ټول مسجد وي .
داچې دلاندې مدرسه وي پاس مسجد او زینې ورته لګولې وي خلګ
پاس دلمانځه لپاره خیژي . داسې شرعا جواز نلري . په شامي اوبحر کښې
همدا مسئلې ښکاره بیان شوې دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۲۳۲ ).



## دلاندې مسجد اوپاس دهستوګنې ځای

پوښتنه : دخیراهل شخص دلاندې مسجد جوړ کړ اوپاس یې دهستوګنې
ځای وو ، خلګ ورځي . آیا دادشرعي مسجد حکم لري ؟ دوهم جماعت
پکښې کیدلای شي .

ځواب : له هغه وخته چې چې داځای یې وقف کړي ملکیت یې ختم دي
داچې لاره یې بېله کړي نه ده . ټولو خلګو ته یې دراتلو اولمونځ کولو واک
ورکړي نه دي نو شرعا مسجد نه دي .

پورته په مالکانه اختیار کې دده هستوګنه دلاندې اذان اوجماعت کیدل
دمسجد کیدلو لپاره کافي نه دي . هلته ددوهم جماعت اجازه شته .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲٤۸ ).

## لاندې دوکان پاس مسجد

پوښتنه : چا په خپله ځمکه دوکانونه جوړ کړل . پاس یې ورباندې
مسجدجوړ کړ. له اول څخه یې لادانیت کړي وي چې لاندې به زما
دوکانونه وي اوپاس دمسجد لپاره وقف ؟

ځواب : په داسې ډول داشرعي مسجد نه دي . هلته لمونځ کول دمسجد
دلمانځه ثواب نلري .

که داځمکه وقف شوې وي دهغه شخص ملکیت نه ده نو دهغو دوکانونه
کرایه په خپله مصرف کول ورته جواز نلري . داواجب ده چې هغه په مسجد
ولګوي اوکه دادوکانونه دمسجد شي بیا دامسجد دشرعي مسجد حکم
ومومي .

(فتاوی محمودیه ۱۰ ټوک ۱۸۳ مخ ،دعالمګیري ۲ ټوک ٤٥٥ مخ په حواله ، درمختار ۳
ټوک ۳۷۰ مخ اوکفایت المفتي ۳ ټوک ۱۲۱ مخ ).

## دمسجد ترڅنګ ځمکه په مسجد کښي داخلول

**پوښتنه** : دمسجد ترڅنګ يوه ټوټه ځمکه دمدرسي په نوم نومولې شوي ده . داځمکه په مسجد کښي ورګډولاي شو مدرسه هم پکښې وي اوخلګو دګڼه ګوڼي له امله خلګ دجماعت په وخت کښي هلته هم دريږي په همدغه ځاى کښي دهغوئ اقتداء صحيح ده ؟

**ځواب** : که هغه ځمکه دچا ملکيت وي . او په مسجد دداخلولو اجازه ورکړي نوداخلول يې صحيح دي خو که بيله دمدرسي لپاره وقف شوي وي نو بيا دي په مسجد کښي نه شاملوي اوکه دمسجد لپاره وړاندي لاوقف شوي وه . بيا دي شامله کړي که دخلګو دزياتوالي په وخت کښي هلته څوک دريږي اقتداء يې صحيح ده .

(فتاوى محموديه ١٠ ټوک ٢٠٠ مخ ).

## دبندشوي مسجد په صحن ( غولي ) کښي ددوکانونو جوړول

**پوښتنه** : که کوم مسجدبند وي ، لمونځونه پکښي نه کيږي ، که هلته دوکانونه جوړشي اوله پاسه ورباندي نوي مسجد ودان شي اوپه دي توګه مسجد هم له غصب څخه خوندي شي ځکه اوس هلته ناولي شيان اچول کيږي آيا داسي کول جائز دي ؟

**ځواب** : کوم ځاى چي يو ځل دمسجدلپاره وقف شي . هغه تل مسجد دي هغه دبل شي داستعمال لپاره هيڅکله هم صحيح نه دي . دمسجد دخوندي توب لپاره لازمه هڅه وشي اوهغه بيا دلمانځه کولو لپاره چمتو شي . داصل مسجد په ځمکه دوکانونه جوړول اوپورته مسجد کول روانه دي .



داوقافو دتخفف دقانون په چوکاټ کښي بايد دهغه دساتلو چاره وشي داسي هم کيدلاي شي چي په ديوالونويي احاطه کړي ، دروازه يې قلف وي اودلمانځه په وخت خلاصيږي که بله هيڅ لاره نه وه چي دغصب کولو مخه يې ونيوله شي بيا نو هميشه ستاسو يادشوي صورت دي .

(فتاوى ١٢ ټوک ٢٧٠ مخ ).

## دمسجد ترنقشي وروسته ، تري لاندي دوکانونه جوړول

**مسئله** : که له نقشي سره برابر دمسجد دجوړولو کار پيل شوي وي دجماعت لمونځ هم پکښي شوي وي ټوله ځمکه کومه چي ورته ورکړل شوي وه . په مسجد کښي نيوله شوي وه خووروسته دافکر پيداکيږي چي مسجد په ټيټ ځاى کښي دي . او اوبه يې ورانوي ټوله نقشه پورته تطبيق کوي خو دلاندي يې دوکانونه يا ګدام جوړ وي . اوپه کرايه يې ورکوي داپه کرايه ورکول صحيح نه دي . که دکار ترپيل وړاندي په پلان کښي دلاندي برخه له مسجد څخه بهر بللي شوي . او دوکانونه ورباندي جوړشوي واي . امکان يې وو خو اوس پکښي همدا ګنجايش نشته .

(فتاوى رحيميه ج ٦ ص ٨١)

**مسئله** : که دمسجد دجوړولو په پيل کښي دمسجد مؤسس داسي نيت وکړی چي په دي نقشه کښي دوکانونه اوخونې شاملي کړی اودمسجد دګټو لپاره يې وقف کړی .داځايونه ترشرعي مسجد بهر دي . هلته ناولي کسان اوحايضه ميرمن ورتلاي شي .

(محموديه ج ٣ ص ٥١٢ )

خوکه يوځل مسجد جوړشي اوپه پيل کښي لاندي دوکانونه اوپاس خوني شاملي نه وي نودمسجد پورتنى برخه اولاندينى برخه دواړه مسجد دي

دهیځ برخي دتصرف حق پکښي چاته نشته . هیڅ برخه تري بهر کولای
نشي . نه يي دوکان اوخونه کولای شي اودمسجد په خير يي احترام او
درناوي لازم دی . دجنب (ناولی) اوحایضي ورتګ هلته ناروا دی .
(فتاوی رحیمیه دریم توک ۱۲۳ مخ اوجدید فقهي مسائل ۷۲ مخ ).

## دموقت مسجد حکم

پوښتنه : که پخوانی مسجد ونړول شي اوپه ځای يي دنوي مسجد
دودانولو اراده وي . دهغه ترېشپړ کیدلوپوري یوبل ځای دجماعت
دلمانځه لپاره معلوم کړي .داصل مسجد تر ودانولو وروسته يي بیرته
پرېږدي دهمدي عارضي اوموقتي مسجد حکم څه دی ؟
ځواب : که هلته دبل مسجد تر ودانولو په عارضه ډول لمونځ کیږي . هغه
شرعي مسجد نه بلل کیږي،دشرعي مسجد حکم نلري . داسي حکم لري
لکه څوک چي په کور کښي کومه ګوښه دلمانځه لپاره ګوښه کړي،هغه هم
همیشني مسجد نه دی . په عیدګاه کښي هم دمسجد احکام نه جاري
کیږي .داچي هغه ځای يي دموقت وخت لپاره مسجد ته ورکړی،دځمکي
څښتن پکښي تصرف کولای شي .
(فتاوی محمودیه اتلسم توک ۱۹۰ مخ اوفتاوی رحیمیه دوهم توک ۱۷۵ مخ ).



## دضرار مسجد څه شي دي ؟

دمنافقینو ددسیسو یوه پیښه داده چي :
په مدینه منوره کښي تراسلام وړاندي یوسړی چي نوم یي ابوعامر وو
عیسوي شو . نوموړی په ابوعامر راهب مشهور شو .داهغه شخص دی چي
زوی یي حنظله ؓ په غسیل ملائکه مشهور شو .خوهمدا ابو عامر دژوند
تر اخیره په نصرانیت پاته شو .
کله چي رسول الله ﷺ مدیني منوري ته هجرت وکړ.ابوعامر درسول الله ﷺ
په حضور کښي داسلام په دین اعتراضونه وکړل .درسول الله ﷺ په
ځوابونو یي هم ډاډ نه تر لاسه کیده . دایي هم ویل : که په موږ دواړو کښي
هریو دروغ وایي هغه دي مردود اوله خپلوانو دي لیري په پردیسي کښي
ومري . ویل یي که ستا دښمنان دبریدلپاره راځي زه ورسره مرسته کوم.
همداسي یي وکړل اودحنین تر غزوي پوري دمسلمانانو په خلاف له
دښمنانو سره ودرید .
کله چي دهوازون ستره اوغښتلي قبیله ماته شوه . نوموړی ناهیلی شو
اودشام سیمي ته لاړ. هغه ځای دنصرانیانو مرکز وو .
نوموړی ترمرګه هلته وو ،هلته مړشو اوخپله ښیراورته ورسیدله .رښتیا
چاته چي رسوایي مقدره وي هغه به همداسي کارکوي.په خپله دعا
اوغوښتنه خوار اوبي وزله کیږي ......
نومړي دروم پاچا ( قیصر ) دي ته هڅا وو چي په مسلمانانو برید وکړي
اومسلمانان له مديني وباسي .
ددي دسیسو یوه کړه، داوه چي ابوعامر دمدیني هغو منافقینو ته لیک
راواستاوو کوم چي له نوموړي سره په سازش اودسیسو کښي شریک وو .

په لیك کښي يې ليکلي وو چي زه به قيصر وهڅوم څو مديني منوري ته
درشي خوتاسو يو ځواك جوړ کړی ترڅو له قيصرسره بيا مرسته وکړي
ښه صورت يې دادی چي تاسو په مدينه کښي يو ځای جوړ کړی چي ښکاره
يې نوم دمسجدوي . ترڅومسلمانان درباندي بدگمانه نشي . هلته خلگ
راټول کړی او وسله راغونډه کړی ترڅوبيادمسلمانانو په خلاف په مشوره
سره معامله وکړو .

دابو عامر په مشوره دمديني دوولس تنو منافقنو چي نومونه يې ابن
اسحاق اونورو ليکلي دي .دقبا په سيمه کښي،چيري چي رسول الله ﷺ
دهجرت په وخت کښي هلته هستوگنه وکړه او يو مسجد يې جوړ کړ،دبل
مسجد اساس کښيښود .

ددي لپاره چي مسلمانان وغولوي دا نيت يې وکړه چي رسول الله ﷺ په
همدي مسجد کښي يو لمونځ وکړي .يو وفد ( هيئت ) يې درسول الله ﷺ
حضور ته راواستاوو او هغوی رسول الله ﷺ ته عرض وکړچي: دقبا له
اوسني مسجد څخه خلگ ليري دي کمزوري اوناروغ خلگ ورته
رسيدلای نشي.دقبا مسجد دومره پراخ هم نه دی چي دمحلي ټول خلگ
پکښي ځای شي . له همدي امله موږ ديوه بل مسجد دجوړولو اقدام وکړ .
که تاسوپکښي يو لمونځ وکړی،هغه به برکتناك شي .

رسول الله ﷺ دامهال دتبوك دغزا لپاره په تياری نيولو لگيا وو.له هغوئ
سره يې وعده وکړه له دي سفر څخه تر راگرځيدلو وروسته به په دي
مسجد کښي لمونځ وکړم،خو له دي سفر څخه دراگرځيدلو په مهال چي
مديني منوري ته نژدي ديره شو. ددي مسجد په هکله درباندي ايت نازل
شو.دمنافقانو همدا دسيسه رسوا شوه. رسول الله ﷺ خپل څو تنه ملگري
چي عامربن سکن اووحشي دحمزه ﷺ وژونکی هم پکښي شامل



وو ،واستول او امر يې ورته وکړ چي هغه مسجد وران کړي او ويې
سوځوی داکسان لاړل اوهغه مسجد يې وران کړ...... داپيښه دقرطبي
اومظهري په تفسيرونو کښي راغلي ده .

په مظهري تفسير کښي دمحمد بن يوسف صالحي په حواله داهم راغلي
دي چي رسول الله ﷺ مديني منوري ته راغی دمسجد ضرار ځای خالي وو.
رسول الله ﷺ عاصم بن عدي ﷺ ته اجازه ورکړه چي هلته دځان لپاره کور
جوړ کړي . هغه عرض وکړ چي :

يارسول الله ﷺ ددي ځای په هکله په قران کريم کښي ايت راغلي دي،ماته
په دي منحوس ځای کښي جوړول خوښ نه دي . خوثابت بن اقرم ﷺ اړ دي
اوکورنلري كه يې نوموړی جوړ کړي. رسول الله ﷺ هغه ته اجازه ورکړه
اوثابت ﷺ هلته کور جوړکړ.خو دهغه په هغه ځای هستوگنه کښي يې اولاد
ونه شو يا پاته نه شو .

مؤرخين ليکي چي هلته دمارغانوله هگيو هم بچي نه پاته کيږي... هغه
ځای تر اوسه قباء مسجد ته نژدي همدغسي ويران پاته دی . داخوهغه
واقعه وه دایاتونو په متن کښي :

په لومړي ايت کښي الله ﷻ فرمايي ( وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا)
هدف پکښي داسي ده : لکه څرنگه چي په نورو منافيقنو عذاب نازل شوي
ذلت او رسوايي درباندي راغلي ده،دامنافقين هم پکښي شامل دي
.کوموچي دمسجد په نوم يې داسي ودانۍ جوړه کړي ده چي موخه پکښي
مسلمانانو ته زيان رسول دي .په دي ايت کښي ددي مسجد دودانولو
موخې (اهداف) درې ښودلي شوي دي :

لومړی : ضراراً يعني مسلمانانو ته ضرر رسول. ضرر او ضرار په عربي
ژبه کښي دواړه زيان رسولو ته ويل کيږي .ځيني پوهانو يې داتوپېر کړي

دی چي ضرر هغه زیان ته ویل کیږي چي دضرر رسونکی پکښی گټه وي اوضرار هغه ضرر رسولوته ویل کیږی دده پکښي هیڅ گټه نه وي.داچي ددي مسجد جوړونکو ته یي کومه گټه ونه رسیدله نودضرار په لفظ ورڅخه تعبیر وشو.

دوهم : تفریقاً بین المؤمنین ښودل شوی دي. یعنی ددي مسجد په جوړولو کښي موخه دمسلمانانو دوه ځایه اومتفرق کول وو. یوه توټه داچي دلته لمونځ کوونکي به دقبا له مسجد څخه گوښه پاته شي.

دریم : غرض{ارصاداً لمن حارب الله } ښودل شوی دی. معني یي داده چي له دي مسجد څخه داکار هم اخستل کیږي چي دالله ﷻ او درسول ﷺ دښمنانوته به پکښي پناه ورکوله کېږي اودمسلمانانو خلاف به دسیسې (پلانونه) جوړیږي.

## دضرار په مسجد يې اور ولي پوري کړ؟

ثابته شوه چي کوم مسجد په ﷺکښي یادشوی دی اودضرار په نوم یي نومولی دي. درسول الله ﷺ په امر نړول شوی اوسوځول شوی دی. په حقیقت کښي هغه نه مسجدوو اونه دلمانځه د اداء لپاره وو بلکي هغه دري مقصدونه درلودل چي پورته یي یا دونه وشوه.

که نن سبا څوک دیوه مسجد په مقابل کښي،هغه ته نژدي بل مسجد جوړکړي،هدف یي سیالي، تفرقه ، دبل مسجد جماعت ته زیان رسول وي. یا نور فاسد اغراض ولري. سره له دي چي دداسي مسجد جوړونکي ته ثواب نه رسیږي بلکي دمسلمانانو ترمنځ دبیلوالي دراوستلو له امله گنهگار کیږي. سره له هغه هم هغه ځای دشرعي مسجد حیثیت لري. ټول احکام وربانديِ جاري دي .نړنگول،سوځول یي جائز نه



دي. څوک چي پکښي لمونځونه کوي،هغه اداء شوي دي. که څه هم داکار په خپل ځای گناه ده.

داسي ښکاري چي څوک درياء له پاره يا دضد اوعناد له امله مسجد جوړ کړي. سره له دي چي گناه کوي اوثواب يي نشته. خوبيا هم هغه د ﷺ، په اصطلاح «مسجد ضرار» نه بلل کيږي. مسجد ضراري ويل صحيح نه دي خو هغه ته ورته يي بللاي شي. دهغه جوړوونکي منع کولای شي لکه چي عمر ﷺ يوفرمان صادر کړ چي پکښي لارښوونه يي کړي وه چي ديوه مسجد ترڅنگ بل مسجد داسي ځای مه ودانوي چي دپخواني مسجد جماعت ته نيمگړتياپيښه شي.

(تفسير کشاف).

په دوهم ايت کښي دمسجد ضرار په هکله رسول الله ﷺ ته حکم شوی وو چي: ( لاتقم فيه ابدا ) له قيام څخه هدف لمونځ کول دي يعني هلته هيڅکله هم لمونځ مه کوه.

مسئله : له دي څخه داسي څرگنديږي چي که چا له لومړني مسجد سره نژدي،په ريا سره يا دمقابلي اوعنادله امله مسجد ودان کړ. هلته لمونځ کول غوره نه دی خو کيږي.

په دي ايت کښي داهدايت هم ورکړل شوی دی چي لمونځ کول په مسجد کښي غوره دي چي اساس يي په تقوی سره ايښودل شوي وي اوهلته هغه کسان پکښي لمونځ کوي چي پاکي ورته خوښه وي اوالله ﷻ هم هغه مطهرين خوښوي.

دايت شريف له محتوی ښکاري چي همدامسجد دقبا مسجد دی چي رسول الله ﷺ پکښي لمونځونه کړي دي اودامطلب له حديثونو څخه هم ښکاره دي.

په ځيني رواياتو کښي بيا راغلي دي چي مقصود ورڅخه نبوي مسجددي داخبره منافي نه ده ځکه ددي مسجد اساس رسول الله ﷺ له وحي سره موافق په خپل لاس ايښي دي ،ښکاره ده چي اساس يې په تقوی باندي ايښودل شوي دي اوتر رسول الله ﷺ نور څوك مطهر وي ځکه هم نبوي مسجد ددي آيت مصداق ضروري دي .

( فيه رجال يحبون ان يتطهروا ) له دي ايت شريف څخه رسول الله ﷺ هغه مسجد احق بللي دي چي اساس يې له اول څخه په تقوی ايښودل شوي دي په دي مطلوب کښي نبوي مسجد اودقبا مسجد دواړه راځي .

دداسي مسجد يوصفت داښودل شوي دي چي پکښي به داسي کسان لمونځ کوي چي دطهارت اوپاکي ډير مراعات کوي له پاکي څخه مقصد له ظاهري ناولتيا څخه هم دي اوله گناه او رذيله اخلاقو څخه هم دي دقبا دمسجد اودنبوي مسجد لمونځ کوونکي ټول همدا صفات لري ...

فائده : له دي پيښي څخه داسي ښکاره کيږي چي دمسجد دفضيلت معيار په دي پوري تړلي دي چي له الله تعالی سره په اخلاص لرلو ودان شي ، هلته پکښي رياء ، نوم ، شهرت يابل فاسد غرض نه وي داهم څرگنديږي چي دنيك ، صالح ،پوه اوعابد لمونځ کوونکو له امله دهغه فضيلت زياتيږي په هغه مسجد کښي چي پوهان ،صالحان اومتقيان لمونځونه کوي فضيلت پکښي زيات دي .

په دريم اوځلورم ايات کښي دداسي مقبول اومنلي مسجد په مقابل کښي دمنافقينو له لوري دجوړ شوي ضرار مسجد بدي ويلي شوي ده ....
بيا فرمايي دداسي مسجد ودانول شك اونفاق زياتوي ترهغه چي ژوندي وي همداشك ، نفاق اوحسد به يې زياتيږي

(معارف القران ج۴ ص ۴۲۱ ، ۴۲۵ ).



مسئله : دضرار مسجد چي په قران کريم کښي يې بيان شوي دي نو ذم اوبدي يې ويله شوي ده ، هلته پکښي مسجد والي مقصود نه دي ، هغه بنا چي ورڅخه مقصد مسجد وي هغه مسجد دي ، دنيت دخرابوالي له امله پکښي ثواب کم وي .

( امداد الاحکام ج۱ ص ۴۲۱ ).

## دمسجد دغولي ډبري دبوټونو په ځای لگول

پوښتنه : يو وړوکي مسجد بيي ونړاوو ترڅو يې پراخ کړي ، دهغه دغولي فرش ډبرو وو هغه ډبري يې دبوټونو په ځای کښي ولگوي ، خلگو اعتراض کاوو چي په دي ډبرو سجدي شوي دي او اوس دبوټونو په ځای کښي لگول شوي دي دهغوئ بي عزتي کيږي ، آيا په هغوئ بوټونه ايښودل صحيح دي ؟

ځواب : دداسي ډبرو ايښودل هلته ښه نه دي چيري چي بوټونه ايښودل کيږي دادعزت منافي دي په کومو ډبرو چي لمونځونه شوي نه وي هغه دهغو حکم نه لري کوم چي دمسجد په غولي لگولي شوي دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۷۲ دعالمگيري ج ۴ ص ۹۵ مخ په حواله وفتاوی رحيميه ج ۳ ص ۱۲۲ ).

## په مسجدکښي دبوټونو له ځای څخه اقتداء کول

مسئله : دبوټونو ايښودلو ځای له مسجد څخه بهر دي يوازي په دي نه چي لاره ده نو اقتداء نه کيږي بلکي هغه ځای مسجد نه دي له مسجد څخه بهر دي له مسجد څخه بهر که دڅلورو صفونو په اندازه ځای خالي پاته کيږي هم اقتداء نه کيږي ددي لپاره دي هلته دري څلور تنه دريږي .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۵۸ شامي ص ۳۹۳ په حواله ).

**مسئله** : په مسجد کښې په قصدي توگه بوټونه بدلول سخته گناه ده خوکه داسي څپلکي پرتي وې چي پرته له مصرف څخه بل څه نه وي په پښو کول يې څه ستونزه نلري
(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۵۲).

**مسئله** : په بوټونو که نجاست نه وو مسجد ته دننه وړل يې پروا نلري خوکه دغلا ويره نه وي نو له مسجد څخه بهر ايښودل يې غوره دي که نجاست ورسره وو پاك کړي يې نه وو بيا يې دننه ايښودل ناجائز دي.
(امداد الاحکام ج ۱ ص ۴۴۴).

## دليلی له خونو څخه مسجد جوړول

**پوښتنه** : په يوه ليليه کښې ډير متعلمين هستوگنه کوي که هلته دري کوټې مسجد کړي خودمسجد منظم شکل نلري پنځه وخته پکښې منظم لمونځ کيږي دامام اومؤذن منظم انتظام وي آن دجمعي لمونځ هم پکښې کيږي آيا دامسجد دنورو مسجدونو حکم لري ؟

**ځواب** : په دي مسجد دشرعي مسجد احکام نه جاري کيږي او دوهم جماعت (په يوه وخت دوه ځله په جماعت لمونځ کول) پکښې منع نه دي.
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۵۲).

**مسئله** : په يوه وداني کښې دمسجد په نوم کومه خونه ځانگړي کول دمسجد حکم نلري اونه ورته دمسجد دلمانځه ثواب رسيږي خو که په جماعت پکښې لمونځونه کوي دجماعت دلمانځه ثواب ورته رسيږي.
(ستاسو مسئلي ج ۳ ص ۱۳۸).

## له اجازي څخه پرته خاوره وړل اوپه مسجد کښې مصرف کول

**مسئله** : دمسلمان يا غيرمسلمان له ځمکي څخه دمسجد لپاره پرته له اجازي خاوره وړل اودمسجد دودانولو په کارکښې لگول ناروا دي داسي کسان ظالمان اوگناه کاران دي دالله تعالی په کور دي حلال مال ولگول شي داسي خلگ دي له دي کارڅخه منع کړاي شي کومه خاوره چي يې راوړي ده بيرته دي ورووړل شي يا دي له مالك څخه واخلي او روپې دي ورکړي
(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۳۰۱).

## دلاري دپراخولو لپاره دمسجد ړنگول

**پوښتنه** : که په کوم مسجد لاره اوسړك راتلل اودهغه مسجد په بدل کښې يې دخلگو له نقشي سره برابر بل ځای مسجد جوړا وو، جواز لري ؟

**ځواب** : مسجدونه دالله تعالی دي نه يې څوك دړنگولو اونه هم دبدلولو حق لري.
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۱).

## دمسجد بې ځايه کول

**مسئله** : که يوځل شرعي مسجد جوړيږي هغه تل مسجد دي هغه ليري کول يا په ځای يې مدرسه جوړول هيڅکله روانه دي مسجد همداسي مسجد ساتل ضرور دي هلته دي پکښې داذان اوجماعت انتظام وکړاي شي دبيا لپاره يې خوندي کړي نه يې په قيمت ورکړي اونه هم دځای ياځمکي په بدل کښې چي داسي کار ناروا دي
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۲ اواحسن الفتاوی ج ٦ ص ۴۵۱).

# له مسجد څخه مدرسه جوړول

مسئله : کله چي شرعي مسجد جوړ شو هلته اذان اوجماعت لمونځ وشو هغه دهيڅ مصلحت په خاطر بدلول چي بل ځای جوړ شي جائز نه دي که دمسجد په څنګ کښي دغير مسلمانانو معبد جوړ شو او څوك وغواړي همدا مسجدً مدرسه بدل کړ ي اوپه عوض يي بل ځای په هم دي نوم مسجد جوړ کړي جواز نلري دغيرمسلمانانو معبد جوړول په مسجد اوجماعت اغيز نلري .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۲۳۴ ).

# په نويو ودانيو کښي دمسجد جوړول

مسئله : دمسلمانانو لپاره مسجد خورا ضروري دي چيري چي هستوګنه غوره کوي هلته مسجد ودانوي که نوي ودانۍ جوړوي هلته هم مسجد جوړ وي خو دهغه دآبادولو فکر هم په کار دي داسي نه چي په يوه جذباتي جوش سره دمسجد کار پيل کړي اوسرته يي ونه رسوي ددي لپاره داضروري ده چي خلګ لمونځ کولو ته وهڅوي .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۹۱ ).

# بې اړتيا دمسجد ودانول

مسئله : دالله ﷻ درضا لپاره دمسجد بنا کول ډېر لوي خير اوثواب کار دي ديوه مسجد ورانول اودبل ودانول شرعا خورا بدکار دي خو که مسجد جوړ اووقف شي نوهغه ودان ساتل خورا ضروري دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۳۸ ).

مسئله : که پخواني مسجدته دزيان رسيدلو اوعداوت په وجه څوك بل مسجد ودانوي نو ورته ثواب نه رسيږي داسي کار شرعا بد دي خو که يي



په شرعي ډول دمسجدابادول وقف کړل ودانول يي ضروري دي هغه مسجدضرار ويل اوورانول ناجائز دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۱۹ ).

# دکورني اعزاز لپاره مسجد ودانول

مسئله : دخدای ﷻ درضا لپاره مسجد ودانول لوی اجر لري خو دنورو اغراضو لپاره يي جوړول مقبول نه دي داسي ځای مسجد ودانول منع دي چي پخواني مسجد ته زيان رسيږي که دهغه مسجد پور پاته وو دهغه فکر کول بايد لومړی وکړي (فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۲۲۴ ).

# قبله څه ده ؟

په اياتونو کښي الله تعالی رسول الله ﷺ اوصحابه کراموته تسلي ورکړي ده چي که څه هم مشرکانو تاسو له مکي څخه په وتلو اوهجرت کولومجبور کړي مديني ته مهاجر شوي : ترشپاړس ،اوه لس مياشتوروسته مو مخونه کعبي ته وګرځول له دي څخه تاسوته کوم زيان نشته نه ستاسو لپاره دخواشيني سبب دي.ځکه الله تعالی په يوه ځانګړي لوري کښي نه دي هرځای دي له همدي امله ختيز اولويديز توپير نلري که کعبه قبله وي اوکه بيت المقدس په دواړو کښي ذاتي ځانګړتيا نشته بلکي دالهي امر دتعميل له امله پکښي فضيلت لري .

( دادحق راقابليت شرط نيست * بلکه شرط قابليت دادهست ) .

له همدي امله چي کعبه ته دمخ ګرځولو حکم دي پکښي فضيلت دي اوکه مومخونه بيت المقدس ته ګرځول هغه دخدای تعالی امراو پکښي فضيلت وو تاسو مه خواشيني کيږي دالله تعالی په حضور کښي دواړه يوډول دي خو چي دهغه حکم عملي کړي .

دڅو میاشتو لپاره بیت المقدس ،قبله گرځول په عمل کښې اوهم درسول الله ﷺ په وینا کښې داخبره څرگنده شوه چې کوم خاص ځای یا لوري قبله منل له دې امله نه دي چې معاذالله خدای ﷻ په دې ځای یا دې لوري کښې دې اوبل ځان نشته ، بلکې الله ﷻ هرځای اوهر لوري کښې موجود دی کوم خاص لوري قبله گرځول نور حکمتونه اومصلحتونه لري دالله تعالی توجه تر کومه خاص ځای یا لوري پورې مقید نه ده .

دعمل ثواب په دوه صورتونو کښې شته .

یا داچې هرشخص ته اختیار ورکړل شي چې که هر لوري ته مخ اړوي لمونځ دې کوي اویاداسې چې ټولوته ځانگړي لوري اوځای مقرر کړي .

ښکاره ده چې په لومړني صورت کښې دتشتت ، بیلتون اوافتراق منظره جوړ وي چې که لس تنه لمونځونه کوي دهره یوه مخ به بیل لوري ته وي اودهریوه قبله به بیله وي...

په دوهم صورت کښې دتنظیم اواتحاد درس ورکول کیږي په دې ملحوظ دټول عالم لپاره یوه قبله جوړول مناسب ده که هغه بیت المقدس وي اوکه کعبه دواړه متبرك اومقدس مقامونه دي هرقوم ته اوپه هره زمانه کښې دالله تعالی له لوري احکام راغلي ، تر یوه وخته دبیت المقدس دقبله جوړولو حکم وو وروسته درسول الله ﷺ او دهغه دصحابه وو دزړه له غوښتني سره سم هغه حکم منسوخ اوکعبه دعالم قبله شوه الله تعالی فرمايي ﴿قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾ ...

له دې آیاتونوڅخه چې ﴿وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ پکښې راغلي دي قبلې ته دمخ اړولوحقیقت ښکاره شو چې ددې مخ اړولو منشاء معاذالله ددې ځایونو عبادت نه دی او نه الله تعالی لره کوم ځای ځانگړی دی بلکې دهغه



ذات په ټول عالم محیط او لوري ته یې توجه یو ډول ده نو چې کوم خاص ځای یا لوري یې ځانگړي کړي دي نور حکمتونه پکښې دي .

(معارف القران ج۱ ص۲۴۵) .

## که دپخواني مسجد دقبلې لوری سم نه وو

**پوښتنه** : پخواني مسجد بیا داستحکام لپاره نوي کوي ، کار یې روان دی نوي ودانۍ نژدې شپږ فوټه په سمت کښې فرق ومومند دقبلې لوري هرومرو انداز بدل شو ، مسجد رنگ اوبیرته ودان کړي که په همدغه حال ورباندي سمت واچوي ؟

**ځواب** : لمونځ له هرومره توپیر سره کیږي خوکه دافرق لري کوي دصفونو لپاره دې نښانونه ولگوي ترڅو خلگ له هغو نښو دقبلې لوري معلوم کړي دټول مسجد رنگولو ته اړتیا نشته .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۳۲ امداد الاحکام ج۱ ص ۴۴۵) .

**مسئله** : که معمولي فرق وي مسجد دې نه رنگوي دقبلې لوري ډېر پراخ دی اوړي اوژمي چې لمر لویږي دهغو ځایونو منځ ټول دقبلې لوري دی لمونځ ورته صحیح دی نو تفرقه دې نه پیدا کوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۱) .

**مسئله** : فقهاوو دقبلې دلوري دمعلومولو لپاره ډېرې لارې ښودلې دي یوه نښه دقطب ستوري دی بل داچې داوړي اوژمي دلمر پریوتلو منځ دقبلې لوري دی .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۲۳) .

**مسئله** : اوس دقطب نما په واسط دصفونو په ځایونو سمې نښې ولگوي اومسجد دقبلې دلوري دمعلومولولپاره مه رنگوي که پخوا همدا لمونځونه شوي دي اعاده یې نشته . (فتاوی محمودیه ج۱۲ ص ۲۲۲) .

« داوس په نسبت دقبلي دلوري دمعلومولو لپاره پخوا سهولتونه نه وو
که پخواني رنګوي دنوي مسجد دقبلي لوري دي سموي دلږ توپير لپاره
دي مسجد نه رنګوي لکه څرنګه چي پاس مفتي صاحب مشوره ورکړي وه
هغسي دي عمل وکړي ( رفعت قاسمي ) .

## دمسجد دقبلي دلوري په لږ توپير کښي حکم

پوښتنه : ديوه مسجد اوږدوالی نهه متره اوسور يي څلور نيم متره دي په
همدي اندازه دقبلي لوري دري زرعي کوږ والي لري يعني که دري زرعي (
يونيم ګز) دديوال يو لوري شاته شي نو لوري سميږي نوداوسني مسجد
حکم څه دي ؟

ځواب : په کم فرق لمونځ نه خرابيږي که دلويديز په ځای شمال يا جنوب
ته مخ شي بيا لمونځ نه کيږي .

( فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۱۱ ) .

مسئله : هلته چي پخوا مسجدونه نه وي داسي مسلمانان هم نه وي چي له
شرعي اصولو سره سم دقبلي لوري وټاکي ، دلمر ، سپوږمی اوستورو په
واسطه هم دقبلي لوري معلومولای نه شواي درصد دالاتو په واسطه دي
خپل زړه ډاډه کړي اوهغه لور ته دي لمونځ کوي .
( فتاوی محموديه ج ۱۲ ص ۲۵۹ اوکفايت المفتي ج ۳ ص ۱۳۲ ) .

## په کاږه نسبت دمسجد دودانولو حکم

پوښتنه : ديوه زاړه مسجد په بيا ودانولو کښي دقطب نما په واسطه
معلومه شوه چي دقبلي لوري اته فوټه فرق لري آياپه دي صورت کښي بيا
په هغو پخوانيو ديوالونو مسجد ودان شي اوکه دقطب نما په واسطه په
معلوم شوي لوري ؟



ځواب : اول : که کوږ والي وليدل شي يا ورباندي وپوهيږي نو هيڅکله
دي په هغه بنسټ بيا مسجد نه ودانوي کيدلای شي پخوا چي دامسجد
ودانيده دقبلي لوري سم نه وي تشخص شوي اوننني الات هغه وخت نه وو
اوس چي دسم پوهيدلو
اول : سباب موجود دي ،سمت دي سم کړي او دنورو مسجدونو لوري دي
هم وګوري .

دوهم : په قصدي توګه دي کوږ والي نه کوي که ورته صحيح معلومات نه
کيده ، دشمال اوجنوب قوس دي جوړ کړي اوترنيم قوس پوري په کوږ
والي کښي لمونځ صحيح دي دمسجد لوی والي او وړوکتوب هم په کوږ
والي کښي فرق راولي خو دفوټ په اندازه مشکل دی .
( فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۴۰ ) .

## دمسجد محراب جوړول

پوښتنه : په مسجدونو کښي چي محرابونه جوړيږي هغه شرعا روا دي ؟

ځواب : په فقهي کتابونو کښي عبارتونه سره فرق لري له ځينو څخه
معلوميږي چي درسول الله ﷺ اوصحابه وو رضی الله عنهم له دوري څخه
محراب ثابت دي ځيني وايي چي دتابعينو له زماني څخه محراب راشروع
شوي دي دتاريخ له کتابونو څخه هم روايات سره توپير لري دفقه علماء په
محراب کښي دريدل او لمونځ کول مکروه ګڼي خو محراب جوړول مکروه
نه بولي تر محراب بهر دريدل خو سجده په محراب کښي کول هم مکروه نه
ګڼي دمحراب په هکله نور احکام هم شته له همدي ټولګي څخه ښکاري
چي په مسجد کښي محراب جوړول جائز دي .
( فتاوی محموديه ج ۲ ص ۱۲۲ دکبيري ۳۴۸ اوبحر ج ۲ ص ۴۵۹ په حواله ) .

مسئله : دقبلې لورې ته ددیوال په منځنۍ برخه کښې چې محراب جوړولو جوړښت وي هغه محراب دي چې امام دصفونو ددواړو لورو ته په منځ کښې ودریږي.

(نظام الفتاوا ج ١ ص٣٢١).

مسئله : که امام خپل قدمونه له محراب څخه بهر کښیږدي لمونځ یې مکروه نه دي.

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ١٤٨).

## دمحراب په جوړولو دمسجد دلویدلو خطره ده

پوښتنه : که چا مسجد پراخ کړ اومحراب په منځ کښې پاته نه شو که په دیوال کښې بل محراب کارې ددیوال دړنګیدلو ویره ده نو حکم یې څه دي ؟

ځواب : که په دیوال کښې دمحراب په جوړولو ددیوال دلویدلو خطره وه محراب دي نه جوړوي او امام دي په منځ کښې دریږي داسې چې دصف دواړو لورو ته مقتدیان برابر ولاړ وي.

(فتاوی محمودیه ج ١٧ ص٢٢).

## ایا محراب په مسجد کښې داخل دی ؟

پوښتنه : محراب په مسجد کښې دننه شمیرل کیږي که نه ؟ که خلګ ډیر وي بیا امام کولای شي دمحراب دننه په لمانځه ودریږي ؟

ځواب : محراب په مسجد کښې دننه دي خو بیا هم امام باید تري بهر ودریږي یا یې یوه برخه بهر وي اوکه په محراب کښې ودریږي هم لمونځ یې کیږي.

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ٢٠٨).

## دمحراب په ځای په لومړي صف کښې دریدل

پوښتنه : مثلاً که دمسجد غولي ددریو صفونو ځای وو دمحراب په برخه کښې هوا ګرمه وه پکه نه وه. امام کولای شي دلومړي صف په ځای ودریږي ؟

ځواب : که دمقتدیانو ځای نه تنګیږي ، دمحراب په ځای دي امام په لومړي صف کښې محراب ته مخامخ ودریږي . (فتاوی محمودیه ج ١٥ ص ٢٢٣ ).

مسئله : دمسجد پخواني محراب دمسجد دپراخولو په وخت کښې بې ځایه کیدلای شي ترڅو دصف دواړه لوري برابر شي.

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص٢١٠).

## په محراب کښې دلمر انځور کښل

مسئله : په محراب کښې نقش او دلمر تصویر رسم کول مکروه دي ځکه دلمونځ کوونکي په خشوع او خضوع کښې خلل پیدا کیږي خو دلمر له تصویر سره خوا کښې دربدل اولمونځ کول دلمر لمانځنه بلل صحیح نه دي

تصویر که دبې روح موجوداتو وي ،مکروه نه دي ، ځکه دهغه عبادت نه کیږي که دمسجد په محراب کښې دلمر تصویر وي هلته لمونځ کول ، دلمر لمانځنه نه ده خو دلمانځه لپاره په حضور کښې خلل پیدا کوي ، ځکه یې ترڅنګ لمونځ کول مکروه دي .

(فتاوی رحیمیه ج ٢ ص ١٧٠ دشامي ج١ ص ٢٠٧).

## په ستر مسجد کښې له ښي او کيڼ لوري صفونه لړول

**پوښتنه** : که ديوه جامع مسجد اوږ دوالي خورا زيات وو لومړی صف پوره کول ستونز من کار وو زاړه اوبيماران ورته رسيدلاي نه شواي آيا روا ده چي دصف ښي اوکيڼ لوري رالنډ کړي اودمسجد ښي اوکيڼ لوري خالي پاته شي خلگ په دوهم صف کښې ودريږي ؟

**ځواب** : کومه برخه چي يوځل مسجد وبلله شوه ښي يا کيڼ لوري يي له مسجد څخه ايستل په هيڅ صورت جائز نه دي هغه برخه تل مسجد ده خو که همداسي عذرونه وو بيا دي دواړو لورو ته خالي ځای پريږدي ، امام دي په منځ کښې دريږي نو دوهم ، دريم اونور صفونه دي هم له لومړی سره برابر دروي . په دي صورت کښې دصف لنډون داول صف له فضيلت څخه لمونځ کوونکي بي برخي کيږي ددي صورت په مکروه والي کي اختلاف دي خو که رکعت پاته کيده ، مثلا امام رکوع ته تللي وو بيا په دوهم صف کښې دريدل مکروه نه دي بلکي درکعت دنيولو لپاره داکار افضل دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۸۸ دشامي ج ۱ ص ۳۸۳ په حواله ).

## دمسجد په ځای په تعمير کښې دصفونو لويوالی اوکموالی

**پوښتنه**: په يوه تعمير کښې دجماعت لمونځونه کوي خو دتعمير دجوړښت له امله صفونه لوي او واړه وي ،داسي دجماعت اوجمعي لمونځ کيدلاي شي ؟

**ځواب** : دتعمير لوري په صفونو برابريدل ضروري نه دي دقبلي په لوري دي صفونه سم دروي که څه هم ځيني صفونه غټ او ځيني واړه وي پنځه وخته لمونځونه په جماعت پکښې ادا کول صحيح دي .



که په هغه تعمير کښې هرچاته اجازه وي چي ورشي نو دجمعي لمونځ هم پکښې صحيح دي که هلته بل مسجد نه وي دمسجد جوړولو هڅه دي وشي.

( فتاوی محموديه ج ۱۷ ص ۲۱۷ ).

**مسئله** : که دځای دتنگوالي له امله لومړی صف وړوکي او نور اوږده وي ، څه حرج نشته اوجائز دي. (فتاوی رحيميه ج ۱۰ ص ۲۲۹ ).

## که امام دمسجد په منځ کښې ودريږي

**مسئله** : امام ته داسي ځای دريدل په کار دي چي په مسجد کښې دننه دشمال او جنوب لوري په صفونو کښې برابر وي دادوتلي ځای اوغولي په هکله دي که محراب په منځ کښې وي خو تر مسجد بهر غولي دواړو لورو ته برابر نه وي امام دي داسي ځای دريږي چي دهمدي وتلي برخي په وسط کښې وي که له دننه محراب سره برابر نه وي کوم باك نه لري .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۵۲ ).

## دمسجد په ځمکه مدرسي ته ځای جوړول

**پوښتنه** : دکلي دمسجد اړونده دوقف ځمکه ده دمدرسي مسئولين غواړي په هغي ځمکه دمدرسي لپاره ځای جوړ کړي اوکرايه يي دمسجد په ضرورياتو ولگوي اوداکرايه ډيرو کلونو داجاري په توگه وي داجاري تر پوره کولو وروسته مدرسه ددي ځای کرايه په خپلو مصارفو کښې صرف کړي آيا داسي معامله صحيح ده ؟

**ځواب** : داچي دي ځمکي ته اوس مسجد اړتيا نلري خودبيا لپاره دپراخيدلو په منظور ورته اړتيا ليدل کيږي که مدرسه وړباندی ځای جوړ کړي تر لاسه کول يي بيا ستونزمن کيږي اوکه دمسجد په موقوفه ځمکه

دمدرسي دوقف په پيسو تعمير جوړ شي دادوه وقف شوي شتمني سره
خلط کيږي نو دامعامله سمه نه ده
که همدي ځمکي ته دمسجد اړتيا اوس نه وي اوبيا هم ورته اړتيا نه ليدله
کيږي دکرايي وړهم نه وي بيکاره وي اودمسجد دتعلق حکم ونلري نو
دکلي اومحلي دخلګو په اتفاق سره هغه خرخولاي شي چي په بدل کښي
يي بل ځای واخلي په دي شرط چي که دامځکه دبل لاس ته ورځي نو
دضرر او تکليف انديښنه پکښي نه وي.
(فتاوی رحيميه ج ۱۰ ص ۲۴۴).

## دمسجد په زياته ځمکه د درس ځای جوړول

**پوښتنه** : دمسجد په زياته ځمکه درس ځای شته خو آيا دمدرسينو زده
کوونکو لپاره ورباندي کورونه جوړيدلاي شي ؟
**ځواب** :هغه ځمکه چي دمسجد ده که ورباندي دزده کوونکو لپاره
دهستوګني يا زده کړي لپاره ځای جوړيږي نو دهغه ځای کرايه دي په
مناسب ډول مسجد ته ورکول کيږي.
(فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۹۵ فتاوی محموديه ج ۱۷ ص ۲۳۱).

## دمدرسي ترسرپرستي لاندي دمسجد حکم

**پوښتنه** : هغه مسجد چي دمدرسي تر سرپرستي لاندي وي انتظام يي
دمدرسي په غاړه ده دمدرس له لوري ورته امام او مؤذن ټاکل کيږي
دمدرسي له لوري ورباندي دترميم مصارف کيږي که هغه تنګ دي
دمدرسي په ځمکه پراخ کيدلاي شي ؟



**ځواب** :که هغه ځمکه دمدرسي مربوط وي دمدرسي داهل په فکر
دمسجد دپراخولو اړتيا محسوس شي هغه ځمکه په مسجد کښي
داخليدلاي اومسجد ورباندي پراخ کيدلاي شي.
(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۵۹).

## په مسجد کښي دمدرسي لاره

که مدرسه دمسجد مربوط وي له بله لوري يي لاره نه موندل کيږي نو
مجبوراً دي په مسجد کښي هغي ته دتلو راتلو لاره ورکړي
(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۲۴۵).

## دمسجد په دالان کښي مدرسه

**پوښتنه** :دمسجد شمالي او جنوبي دالانونه دزده کړي ځايونه دي ، زده
کوونکي پکښي درس وايي خو داوقاف مسئولين داکار نه خوښوي او
درس منع کوي ايا داکار شرعا صحيح دي ؟
**ځواب** :که داوقف په رضا اوخوښه شوي وي خو ليري کول يي نشته
اوکنه په کرايه دي معامله وکړي.

## دمسجد عايد په مدرسه لګول

**پوښتنه** :مسجد عايد لري خو هغه دمدرسي ناظم په مدرسه لګوي
دمسجد دترميم او روښنايي مصارف له مرستي (چندي) يا دځرمنو له
بيعی پري کوي. داسي کار سم دي ؟
**ځواب** : داصورت صحيح نه دي دمسجد عايد دي په مدرسه نه لګوي
داختر دقرباني دځرمنو له بيعی څخه دي معاش نه ورکوي ، ترميم دي
ورباندي نه کوي که داسي کاروکړي همدغه مبلغ ورباندي پورا وړي
(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۹۹)

مسئله : که دمدرسي په پیسو څه شي اخستل کیږي هغه دي دمدرسي په اړتیا وو کښي استعمالیږي همدا شان که دمسجد په پیسو څه اخستل کیږي دمسجد په ضرورت کښي دي مصرفیږي که همداشي دکوم مقصد لپاره اخستل کیږي ، هغه پوره شي اوشي زیات شي مدرسي ته یې ضرورت نور نه وو خو دمسجد یا دمسجد دامام ورته ضرورت وو هغه دي له مدرسي څخه په بیه واخلي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۳ ).

مسئله : که دوکانونه جوړ کړي اومسجد ته یې وقف کړي که هغه خرڅ کړي پیسي دمدرسي په تعلیمي چاور کښي لګول روانه دي که څه هم هغه مدرسه دمسجد متعلق وي . (فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۷۳ ).

## دمدرسي په ځمکه دمسجد جوړول

پوښتنه : دمدرسي لپاره دضرورت په خاطر مسجد جوړیږي هغه شرعي مسجد دي ؟

ځواب : که نژدي بل مسجد نه وي یا موجود وي خو تنګ وي یاهلته لمانځه ته تلل دمدرسي مصالح پاته کیږي مثلا دوخت خبره وي یا دمدرسي حفاظت نه کیږي یا نور نو بیا دمدرسي په ځمکه دمسجد جوړول دمدرسي له ضروریاتو څخه دي اوهغه مسجد شرعي مسجد دي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۲۶ ).

## دمسجدلپاره په وقف شوي ځمکه ، مدرسه ودانول

پوښتنه : یوه سړی دمسجد لپاره یوځای جوړ کړ اداري کسانو له هغه ځای څخه په کرایه هستوګن شخص وایست اوپه هغه ځای مدرسه جوړ وي نو دمسجد عاید چي له دي ځایه څخه په لاس راتلل ختم شول آیا دا روا دي ؟

ځواب : دمسجد لپاره په وقف شوي ځمکه مدرسه ودانول اودمسجدعاید ختمول جائز نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۵۵ ).

## دړنګ شوي مسجد په ځای مدرسه جوړول

پوښتنه : یومسجد په بشپړه توګه وران شوي وي اوس یوازي ځمکه پاته وي بله نښه نه ښکاري خلګ یې بې احترامي کوي آیاهلته مدرسه ودانول جواز لري ؟

ځواب : دمسجد ځمکه که وزباندي ودانۍ وي اوکه نه وي ترقیامت پوري دمسجد په حکم کښي ده نو ځکه یې ادب ، احترام اوتعظیم واجب دي بې عزتي کول یې حرام دي که دمدرسي انتظام نه وي مسجد دي پریږدي بل ځای دي درسونه وایی په هغه ځمکه که مسجد نه ودانوي لږ ترلږ دیوالونه دي تري وګرځوي ترڅو یې بې عزتي ونشي کنه خو اوشا ټول مسلمانان ګنهکار دي له همدي امله په کوم افت دګرفتاري ویره شته ، دمسجد په ځای مدرسه جوړول شرعا جائز نه دي .

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۸۵ ددرمختار اوشامي ج ۳ ص ۵۱۳ په حواله ).

## په مسجد کښي دامام لپاره خونه جوړول

**مسئله** : دامام اونورو لپاره خوني جوړول لکه داوداسه دځای په څير دمسجد په ضروریاتو کښي شامل دي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۰۸ ) .

## دمسجد په بام دامام لپاره خونه جوړول

**پوښتنه** : یومسجد دري پوړيز دي دامام او مؤذن لپاره پکښي ځای نشته دمسجد په انګړاو احاطه کښي هم داسي ځای نشته چي خوني پکښي جوړي شي دبام دپاسه دامام لپاره ، کوټه ، ديني مدرسه یا دزده کوونکو دهستوګني دځای دجوړولو جواز شته ؟

**ځواب** : جواز نلري اودمسجد په بام دمسافرخانې جوړول هم جواز نلري .
(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۸ دبحر الرائق ج ۵ ص ۲۵۱ په حواله ) .

**مسئله** : دمسجد په بام دامام لپاره خونه جوړول جواز نلري داوداسه دځای ، دغسل خاني اونورو ځایونو چي دمسجد دوداني بهر وي ورباندي دامام لپاره خونه جوړول جواز لري کوم ځای چي یوځل مسجد شوي دي هغه دقیامت تر ورځي مسجد دي .

( نظام الفتاوی ج ۱ ص ۳۱۳ شامي ج ۱ ص ۴۴۱ په حواله کفایت المفتي ج ۳ ص ۱۱۲ .



## امام له خپلي کورنۍ سره دمسجد په انګړ کښي اوسیدل

**مسئله** : دمسجد په انګړ کښي دامام او مؤذن لپاره هستوګنه صحیح ده خوله کورنۍ سره بي حجابي پیښیږي دماشومانو دشور او شرله امله دلمونځ کوونکو حضور خرابیږي اوستونزه راولاړ وي نو منع ده که دا وراني نه وي بیا جواز لري .
(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۹۵ ) .

## دامام خونه په مسجد کښي داخلول اوپاس خونه جوړول

**پوښتنه** : دمسجد ترڅنګ خو بهر دامام لپاره یوه خونه ده اوس دمسجد دپراخولو اراده ده که دامام خونه په مسجد کښي داخله شي اوپاس وربانديې دامام لپاره خونه جوړه شي ، جواز لري ؟

**ځواب** : که داخونه دلمانځه لپاره په مسجد کښي داخلیږي نو وربانديې دپاسه بله خونه دامام لپاره جواز نلري ، که هغه خونه دلمانځه لپاره په مسجد کښي نه داخلیږي بلکي هدف پکښي داوي چي که ضرورت پیښیده لمونځ کوونکي به پکښي دریږي بیاپاس وربانديې دامام لپاره خونه جوړول جواز لري .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۱۲ ) .

## په مسجد کښي دامام استراحت کول

**پوښتنه** : په داسي مسجد کښي چي دامام لپاره دهستوګني خونه نه وي که امام په مسجد کښي کټ ( چهار پائي ) کښیږدي او پري پریوزي جواز لري ؟

**ځواب** : داکار دمسجد ادب ساتلو خلاف دي او دنورو لپاره دتوحش سبب دي نن سبا په مسجد کښي کټ ایښودل بي ادبي ګڼل کیږي خو په داسي مسائلو کښي عام عرف ته کتل کیږي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۲۸ او احسن الفتاوی ج ۶ ص ۴۵۲ )

## که امام اومؤذن دمسجد اړوند شیان استعمال کړي

**مسئله** : په مسجد کښي دوه ډوله شیان وي یو داسي شیان چي کلیوال یي ورکوي هغه که اجازه ورکړي استعمالولای ئي شي دوهم هغه شیان چي منتظم ته اخستل شوي وي که هغه اجازه ورکړي استعمالولاي یي شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۲ ).

## که امام په مسجد کښي تجارت کوي

**مسئله** : په مسجد کښي هلته چي لمونځ کیږي ، رخت یا بل څه ایښودل او تجارت تحریمي مکروه دي که امام داخبره نه مني له امامت څخه ګوښه کول یي مناسب دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۷۸ ).

« خو که امام په خپله کوټه کښي او یا له مسجد څخه بهر تجارت کوي جائز دی . ( رفعت ) .

**مسئله** : که دامام دخوني دروازه بهر دسړك لور ته وه هلته یي ورسره دمیرمني هستوګنه منع نه ده .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۷۳ ).



## دمسجد دغلي خرڅوونکی ، ضامن دی

**مسئله** : که چا دمسجد غله خرڅه کړه خرڅوونکي دپیسو ضامن دي چي هغه پیسي راوړي که اخستي روپي ورنکړي خرڅوونکي به یي مسجد ته ورکوي بیا یي اخستونکي بخښي او که یي تري اخلي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۲ ).

## دمسجد دونو دمیوي حکم

**پوښتنه** : که دمسجد په دننه غولي کښي ونه وه دهغي میوه دچا حق دي او که دتبلیغي جماعت کسان راغلل آیا هغوي یي تري خوړلاي شي ؟

**ځواب** : ښکاره ده چي هغه ونه دمسجد ده دوني دمیوي بیه دي مسجد ته ورکړه کیږي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۳ ).

« که وني ایښودونکي هغه دټولو لمونځ کوونکو لپاره ایښي وي ټولو ته یي میوه خوړل اجازه ده . (رفعت قاسمي ).

## دمسجد په دوهم پوړ کښي دمسافرو هستوګنه

**مسئله** : دشرعي مسجد پورتني برخه هم شرعي مسجد دي هغه دمسافر خاني په توګه استعمالول منع دي دمسجد احترام ورسره ختمیږي که دمسافرو لپاره بیل کوم ځای نه وو بیا دي پکښي هستوګنه وکړي خو دمسجد احترام دي لکه څرنګه چي یي حق دي هغسي وساتي که یي احترام ساتلي نه شو اجازه دي نه ورکوله کیږي .

(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۹۲ ).

## مسجدته دننوتلو ددعاد ویلو ځای

**پوښتنه** : یوستر مسجد دي ، دډیري پراختیاله امله یې داصل مسجد حدود بیل دي په داسي مسجد کښي به دعاد کومي دروازي په ننوتلو ویله کیږي ؟

**ځواب** : کوم ځای چي لمانځه ته ټاکلي شوي دي اوهلته ناولي څوك ورتللاي نشي که هغه چت ولري کنه ، هلته په ننوتلو دعا ویله کیږي کوم ځای پټ یا لوځ چي له مسجد سره لګیدلي وي خو دلمانځه لپاره ټاکلي شوي نه وي او په ناپاکه حالت ( حائض ، جنوب ) کښي ورتلل منع وي هغه ځای مسجد نه دي که څه هم په احاطه کښي دننه وي هلته په ننوتلو ددعا ځای نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۳۱۲ آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۰ ).

**مسئله** : مسجد ته په ننوتلو لومړی ښي پښه دننه کول او دوتلو په وخت کښي لومړی کینه پښه ایښودل سنت دي دننوتلو په و خت کښي دادعا ویله کیږي . ( **اللهم افتح لي ابواب رحمتک** ) او دوتلو په وخت کښي دادعا ده .( **اللهم اني اسئلک من فضلک** ).

(مسلم شریف ج۱ ص ۲۴۸ ).

## مسجد ته دراتلو اوتلو په وخت کښي سلام اچول

**پوښتنه** : اول : که په مسجد کښي څوك نه وو دوتلو اوننوتلو په وخت کښي سلام اچول څرنګه دي ؟

دوهم : کله خو ټول خلګ په لمانځه لګیاوي او یوڅوك سلام اچوي یا څوك لمونځ کوي ، څوك اودس اوڅوك دلمانځه په انتظار وي په دي وخت کښي چي څوك راشي سلام واچوي داڅرنګه دي ؟



دریم : ځیني خلک لا په سنتو ولاړوي خو یوڅوك له مسجد څخه وزي سلام اچوي داهم څرنګه دي ؟

**ځواب** : لومړی : داطریقه سمه ده ، داسي دي وایي ( **السلام علینا وعلی عبادالله الصالحین** ) خو دننوتلو په وخت کښي ثواب لري !ودوتلو په وخت کښي یې په کوم کتاب کښي کوم روایت لیدل شوي نه دي

دوهم : دا بالکل مکروه ده ،دامسئله په رد المحتار کښي راغلي ده .

دریم : داهم مکروه دي ( فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۷۹ )

**مسئله** : مسجد ته په ننوتلو سلام اچول کیږي خو شرط دادي چي خلګ ناست وي په تلاوت یادرس لګیا نه وي که خلګ مصروف وونو منع ده که په مسجد کښي څوك نه وو یا چا لمونځ کا وو نو دورتلو په وخت کښي په وروغږ چي لمونځ کوونکي یې نه اوري ووایي : ( **السلام علینا من ربنا وعلی عبادالله الصالحین** ).

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۵۲ دشامي ج۱ ص ۵۷۲ په حواله آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۳۹ نظام الفتاوی ج۱ ص ۳۱۰ احسن الفتاوی ج ۲ ص ۱۵۵ اودرمختار ج۱ ص ۵۷۸ ).

## په مسجد کښي تبلیغي نصاب په مائک ( لاؤډسپیکر ) کښي لوستل

**پوښتنه** : په مسجد کښي اذان یا دکوم عالم دتقریر لپاره مایك لګیدلي وي نو که قران کریم نعت ، نظم یا تبلیغي نصاب یا بل څه پکښي واي اوهمدا مهال خلګ په لمونځونو مصروف وي روا دي که نه ؟

**ځواب** : تبلیغي نصاب هغو کسانو ته ویل کیږي څوك چي هلته موجود وي که پرته له مایك څخه اواز اوریدل کیده نو بیا یې ولي په مایك کښي وایي مایك دي نه استعمالوي په تیره بیا که خلګ هم په لمانځه لګیا وو .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۵ ).

## په مسجد کښي دمرسته کوونکي دنوم اعلانول

**پوښتنه** : که په مسجد کښي په لوډ سپیکر کښي دهغه چا نومونه اعلانوي چاچي مرسته کړي وي هدف پکښي داوي چي نور خلگ هم ترغیب شي . جواز لري ؟

**ځواب** : صحیح ده خو دافکر کول لازمي دی . چي مسجد دگټي ځای یا ذریعه نشي . له مسجد څخه بهرداسي انتظام کول په کار دي که داعلان مقصد داوي چي دده نوم تولو ته معلوم وي دامقصد غلط دي دشهرت اونوم لپاره په مسجد کښي پیسي ورکول الله تعالی ته مقبول عمل نه دی .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۴۱۰ ).

## په اعلان سره فیس (اجوره) اخستل

**پوښتنه** : کلیوال دڅه شي په هکله په لوډ سپیکر کښي اعلان کوي ، دمسجد دچارو مسئولین داعلان په بدل کښي پیسي اخلي ددي حکم څه دي ؟

**ځواب** : دمسجد اهل ته ددي په استعمال معاوضه اخستل صحیح ده دور کوونکي په خوښه دمایك داستعمال په عوض معاوضه اخستل څه مشکل نه پیښوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۰ ).



## دمسجد په مایک کښي دچندې (مرستي) ورکوونکي نوم اعلانول

**مسئله** : دمسجد په مایك کښي داسي اعلان ترغیب هم دي اوفساد هم دي ترغیب ښکاره دي اومفسده دوه ډوله ده :

یوداچي نوم په نوم اعلانیږي خلگ یي توصیف کوي ځني خلگ دهمدي لپاره مرسته ورکوي چي نوم یي اعلان اوصفت یي وکړای شي داداخلاص خلاف خبره ده ثواب یي ضایع کیږي .

دوهم داده چي که څوك کمه مرسته وکړي دنوم په اعلان سره خجل کیږي اوخلگ ورته په سپکه سترگه گوري داناروا دي له همدي امله دداسي اعلان له کولو ځان ساتل په کار دی .

(فتاوی محمودیه ج ۸ ص ۲۱۴ ).

## په مسجد کښي دورک شوي شي اعلان کول

**مسئله** : په مسجد کښي که ورك شوي شي پیدا شي اعلان کول یي صحیح دي له مسجد څخه بهر که کوم شي ورك شي دهغه اعلان په مسجد کښي کول جائز نه دي رسول الله ﷺ دغسي سړی ته ښیرا کړي ده فرمایي « لارد الله علیك » ( خدای ﷻ دي وکړي چي ورك شوی څیز دي ونه موندل شي )

**مسئله** : په مسجد کښي داړوندي مدرسي لپاره داخترد قرباني دڅرمنو اعلان جائز دي یو یا دوه ځله دي کیږي خو دلمونځ کوونکي خیال دي ساتل کیږي چي اخلال نشي . (آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۲ ).

**مسئله** : په مسجد کښي دورك شوي پلټل پرته له اعلان څخه جائز دي اعلان که کوي داودس په ځای کښي یا په دروازه کښي دي وشي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۵۴ ).

مسئله : دورك شوي ماشوم اعلان دانساني موجود داهميت له امله په مسجد كښي صحيح دي كه په مسجد كښي كوم شي وموندل شو دهغه داسي اعلان صحيح دي چي داشي موندل شوي دي داچي لاوډ سپيكر دمسجد لپاره دي نو هغه دگناه دكارونو استعمالول ناروا دی .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۴ معارف السنن ج۱ ص ۳۱۲ کتاب الفقه ج۱ ص ۴۵۹ ).

## كه دمسجد دمايک لاوډ سپيکرونه په منارونو کښي وي ، يا اعلان کول

پوښتنه : دمسجد مايك دخلگو په مرسته اخستل شوي دي دخلگو نيت دادي چي پكښي اعلان وشي مايك دننه خو لاوډ سپيكرونه يي په منارو كښي دي نو په هغه كښي اعلان صحيح دي ؟

ځواب : كه پرته له اذان څخه دنورو شيانو اعلان كوي مثلا څۀ شي ورك شوي وي نوبل ځاى دي اعلان كوي هر شي چي دلمانځه اومسجد اړوند نه وي دهغه اعلان دي له مسجد څخه بهر كوي دمسجد دمايك ، په منارونو كښي په لاوډ سپيكر دي اعلان نه كوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۵۹ نظام الفتاوی ج۱ ص ۳۰۱ ).

مسئله : دمسجد دننه ، دلمونځ كوونكو دخبرتيا لپاره دجنازي دلمانځه اعلان جواز لري خو دورك شوي شي دپلټني اعلان په مسجد كښي ناروا دى .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۳ ).



## دمسجد دننه په مايک کښي اذان کول

پوښتنه : په يوه مسجد كښي لاوډ سپيكر دننه ايښي دي داذان لپاره مؤذن دلومړۍ صف په ځاى درېږي او اذان كوي آيا دمسجد دننه اذان كول مكروه دى ؟

ځواب : په مسجد كښي دننه داذان كول له دي امله مكروه دي چي غږ بهر ليرى نه رسيږي نو داذان مقصد نه پوره كيږي له همدي امله په لوړ ځاى اذان كول مستحب دي په خپله اذان داسي شي نه دي چي دمسجد داحترام خلاف وي نو داځكه په دي مسئله كښي چي اذان په مايك لري رسيږي داذان مقصد پوره كيږي نو ممانعت نلري .

(فتاوى محموديه ۱۵ ، ۲۳۳ ).

## په ډيرو مسجدونو کښي لاوډ سپيکر لګول

مسئله :داچي ديوه مسجد لـه لاوډ سپيكر څخه ټولو نژدي كليوته غږ رسيږي اودلمانځه وختونه سره يو دي نو په نورو نژدي مسجدونو كښي دلاوډ سپيكر لگول ضرور نه دي دهغه لپاره دي دمسجد پيسي نه مصرفيږي . (فتاوى محموديه ج ۱۸ ص ۱۵۹ )

## له اذان څخه پرته دنورو شيانو لپاره دلاوډ سپيکر استعمال

پوښتنه : كه په مسجد كښي څوك نه وو په كورو كښي سړى او ميرمني په كارونو لگياوي يا يي دا غږ نه اوريده نو سهار مهال په لاوډ سپيكر كښي داحاديثو لوستل څرنگه دي ؟

ځواب : داچي په مسجد كښي څوك نه وي په كورونو كښي هم سړى او مير مني په كارونو لگياول اوريدلو ته متوجه نه وي نو په داسي حال كښي دحديث شريف اورول بي مورده دي له هغه دي ځان وساتي .

مسئله : په مسجد کښي که جلسه وه نو دحمد ، نعت ، وعظ اوتقرير لپاره دمسجد لاوډ سپيکر استعماليدلاي شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۲۲۱ ، ۲۲۲ ).

## په مسجد کښي دوعظ دفتي ( نوار، کيسټ ) اوريدل

مسئله : له راډيو يا ټايپ څخه دتلاوت يا وعظ اوريدل په مسجد اوغير مسجد کښي توپير نلري او روا دي خو که په مسجد کښي داطريقه چي تلاوت يا وعظ له راډيو اوټايپ څخه اوري ، پيل شي ، داويره شته چي بيا به دکورونو په څير هر څه پکښي اوريدل کيږي دروا اوناروا توپير به ورك شي نو له دي کار څخه ډډه کول ضروري دی .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۵۳ ).

## په مسجد کښي چوکۍ ايښودل اووعظ کول

مسئله :که منبر نه وي ، چوکي ايښودل او ورباندي دوعظ لپاره کښيناستل صحيح دي دوعظ اوتقرير لپاره په مسجد کښي دلاوډ سپيکر استعمال هم جائز دی . (فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۸ ).

مسئله : دشرعي احکامو دبيان لپاره په مسجد کښي جلسه کول روا دي مقرر او واعظ ته لازمه ده چي په ډير متانت اوتدبير سره دالله تعالی او رسول الله ﷺ لارښووني خلگوته واوروي ، هغوئ ورباندي وپوهوي اوريدونکيو ته هم ضر ور ده چي په خورا ادب سره هغه واوري .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۷۴ ).

« په جلسه کښي شر اوشور ،طفه اوبد ويل اوهرهغه عمل چي دمسجد داحترام منافي وي ونه کړاي شي (محمد رفعت قاسمي ») .

مسئله : په مسجد کښي تقرير او درس که په اوږدو شپو کښي وي اوکه په ...ندو کښي لاوډ سپيکر دي . دمسجد دننه وي بهر يي غږ وتل ناروغانو



اونورو خلگو ته خوا توري توب پيداکوي اوريدل هغه وخت گټور وي چي په ذوق اورغبت سره وشي،که چا داوريدلو ذوق درلود هغه دي وهڅول شي چي مسجد ته راشي

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۵)

## دمسجد له پيسو دمايک دبټرۍ رانيول

پوښتنه : که دمسجد دلاوډ سپيکر بټرۍ بي چارجه يا ورانه شوه دهغي مصرف دمسجد له روپو ورکول کيدلاي شي ؟

ځواب : که دمسجد داړتيا لپاره په کارشوي وه ، دمسجد له روپو څخه دي خرڅ ورکړل شي اوکنه بيل انتظام دي وشي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۸ ).

## په مسجد کښي لاس پاك ( توليا ) يا نورڅه ايښودل

مسئله : په مسجد کښي لاس پاك ( توليا ، گانچه ) او اينه ايښودل تکلفات دي ، کوم کسان چي په کور کښي همداسي تکلفات کوي ، مسجد کښي دي هم داشيان ځان ته برابر کړي داهغه څه دي چي نه ضرور دي چي په مسجدکی يي چمتو کړي اونه منع دي چي حرام وبلل شي .اصل خبره داده چي په کور کښي اودس وشي مسجد ته لاړ شي ، که څوك په مسجد کښي اودس کوي خپله توليا دي ورسره راوړي .

تر اودس کولو وروسته په اينه کښي کتل نه شرعي کار دي اونه هم رواجي ددي عادت پريښودل غوره دي ، دمنبر دپاسه پوښ اچول هم بيوتکليفي کار دي په وره او ديوال باندي رختونه ځوړند کول هم په حديث شريف کښي منع شوي دي خو که دتودوخي او يخني لحاظ پکښي کيږي کوم مشکل نشته :

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۲ ).

مسئله : دمسجد په دیوالونو آینه یا نور داسي تزین چي دلمونځ کوونکي ورته توجه اوړي مکروه دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۲).

## په مسجد کښي تغداني

تغداني که سهار اوماښام پاکیږي ،بدبوی نه کوی په مسجد کښي ایښودل يي پر وا نلری اوکه بوی کوی اجازه ورته نشته تغداني دمجبوری په وخت کښي استعمالیدلای شی که بهر ناړی توکړای شی یا په دسمال کښي تو کړای شی غوره ده.

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۰).

## دروژي په میاشت کښي دمسجد تزئین

مسئله : درمضان په میاشت کښي تر نور کله لمونځ کوونکی ډیر وی که دهغوی دراحت اوسهولت لپاره رڼا څه زیاته شی روا اوغوره کار دي که یوازی دمسجد دښکلا لپاره رڼا تر حد زیاتیږی ناروا اومنع دي ، دشریعت په خلاف شیانو دمسجد ښکلا اوتزئن دهغه پاك ساتل ، دلمونځ کوونکو ډیر والي ښه بوی دلمونځ کوونکی خشوع اوخضوع اوپه ادب سره پکښی کښیناستل دي.

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۰).

## دخدای ﷻ په دربار کښي ددنیا کارونه

مسئله :په مسجد کښي چي ډاډه ځای دي هلته دي کښیني دلمونځ کوونکو مزاحمت دي نه کوی ، نه دي شر اوشور جوړ وي نه دي په صف کښي په زور ځان ځایوی نه دي دلمونځ کوونکو ترمخ دتیریدلو جرات کوی ، نه دي دگوتو تکان باسی چی ممانعت یي راغلي دي داسی



حرکتونه چي دادب خلاف اوپه شریعت کښي ناخوښه دی ورڅخه دي ځان ساتی که موقع وه وخت دي په ذکر اونفلونو تیروی اوکنه پټه خوله دي په ادب سره کښیني

(فتاوی عالمگیري ج ۲ ص ۲۱۵).

## له دنيايي ويناوو څخه ځان ساتل

دمسجد له ادبونو څخه یوادب دادي چي هلته ددنیا له خبرو څخه ځان وساتی که هغه خبری روا وي اوکه ناروا ، په ننني زمانه کښي عوام او خواص په همدی گناه کښي څه ناڅه اخته دي ، څکه به يي لږ په تفصیل سره بیان کوی :

(( وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا )) (سورة جن۲
)

ژباړه : مفسرین ددي دتشریح په ترڅ کښي په مسجد کښي ددنیا دخبرو په هکله هم بیان لری وايي دادالله ﷻ کور دي اوهغه دتسبیح ، تقدیس اوعبادت لپاره ځانگړی دي.

دمسجد قدر او منزلت هم په دي کښی ده چی هلته له دنیا يي خبرو څخه ډډه وشي . هلته ټوله توجه دخدای ﷻ لور ته وي.

## درسول الله ﷺ وړاندوینه او امت ته لارښوونه

زه داخبره څکه رانقلوم چي څرگنده شي او کومه ستونزه چاته پیدانشي ، کنه هرچاته معلومه ده چي درسول الله ﷺ په زمانه کښي دمسجد څومره احترام وو ، خلف اوصحابه وو دهغه احترام څرنگه کا وو له حدیثونو څخه ښکاری چی داخبری هغه مهال دعامو مسلمانانو په خیال کښي هم نه راتلي.

رسول الله ﷺ دوړاند وینې په توګه وفرمایل : یوه زمانه به راشي چې ددنیا خبرې به په مسجدونو کښې کیږي ، بیایې په تاکید سره وفرمایل چې مسلمانان به هغه مهال څه کوي فرمایي :

(( فلا تجالسواهم فلیس لله فیهم حاجة ))

(مشکوة ج۱ص۷۱)

( له هغو خلګو سره ( چې په مسجدونو کښې ددنیا خبرې کوي ) مه کښینې ، الله ﷻ ته په هغوی کې هیڅ اړتیا نشته )) .

فقیه ابولیث رحمة الله علیه له حضرت علی ؓ څخه یو روایت رانقل کړی دي چې هلته یې په خورا تاکید سره ویلي دي (( په خلګو به یوه داسې زمانه راځي چې له اسلام څخه به پرته له نوم او له قران څخه به پرته له نښانه بل څه پاتې نه وي هغوئ به مسجدونه ودانوي خو دالله ﷻ ذکر به پکښې نه کیږي .

(تنبیة الغافلین۱۰۱)

دارواتیونه کتل ، هغه وخت چې پیش ګوي ( وړاندوینه ) شوي وه ، هغه زموږ دزمانې په هکله ده له همدې امله دپوهې خاوندان دې ښه غور وکړي او عام مسلمانان دې په خپلو کړو وړو نظر وکړي .

څوك نه پوهیږي چې مسجد دالله ﷻ دربار او دهغه درحمت دڅرګندتیا ځای دي نو په داسې سپیڅلی دربار کښ ... څومره ناوړه ، له عقل څخه لیرې اوبدکا ...

دځمکې ...

مو ...



ددنیای کاروبار ځای شر او شور ورسره لازم دي ، او همدا دخورا بدځای لوازم ، سپیڅلی دربار ته ورسوو ، هغه ځای چې خدای ﷻ ته خورا ګران دي ، رښتیا څومره ستره ګناه ده ، الله ﷻ دې موږ ته ددین دپیژندلو توفیق راکړي .

## په مسجد کښې دنیوی خبرې کول

**مسئله** : په مسجد کښې په دنیا یې خبرو لګیا کیدل یو زیانمن عمل دی درسول ﷺ داوړاندو وینه چې وایي (( داسې زمانه راتلونکې ده چې په مسجد کښې به ددنیا خبرې کیږي )) .له هغوی سره مه کښینې ، خدای ﷻ دوی ته اړتیا نلري

(مشکوة ج۱ص۷۰)

همدا څه ښیې ، بیا رسول الله ﷺ فرمایي :

(( دنیا یې خبرې نیکې داسې خوري لکه اور چې لرګی خوري ( سوزوی ) )

په یوه بل حدیث شریف کښې راځي ( که په مسجد کښې ددنیا خبرې کیږي ملائکې ورته وایي : (( اې دالله ﷻ دښمنه ! پټه خوله شه ) که بیا هم خبرې کیدي ورته وایي ( په تادې لعنت وي پټه خوله شه ) .

(کتاب المدخل ج۲ ص ۵۵ ).

که په مسجد کښې دخبرو لپاره ناست نه وي خو ناڅاپه ددنیاخبرې په تیټ غږ وکړي ، څه ستونزه نه ده خو بیا هم ترې ځان ساتل غوره دي .

(فتاوی رحیمیه ج۲ ص ۱۲۱ امداد الاحکام ج۱ص۴۴۱ ).

... په مسجد کښې له لمونځ کوونکو سره داسې خبره کول چې په ... کښې غلطوي یا دنقصان پیښدلو ویره وي مکروه ده .

( فتاوی دارالعلوم ج۴ ص ۱۰۷ ددرمختار ج۱ص۲۰۲ په حواله ).

**مسئله** : په مسجد کښې ناروا خبره په لوړ اواز کول مکروه تحریمي ده .

( کتاب الفقه ج۱ ص ۴۵۵ او احسن الفتاوی ج ۲ ص ۴۵۲ ).

**مسئله** : په مسجد کښی ددنیا دخبرو لپاره کښیناستل ناروا دي ، څوک چې دعبادت لپاره راغلل اوبیا اړتیا پیښه شوه او مباح خبري یي داسي وکړې چي نورو عبادت کوونکو ته زیا نمني نه وي ، صحیح دي خو غیر مباح خبرې لکه چټیات ، فحش او ددروغو قصې کول سمي نه دي .

(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۵۰۸ اوآپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۵۱).

**مسئله** : دحال احوال پوښتنه کول ، یا یوه ضروري خبره کول منع نه دي ، خوبي معنی قصي کولو ته په مسجد کښی اجازه نشته .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۲ کفایت المفتي ج ۳ ص ۱۷۰).

## په مسجد کښی کښیناستل اومشوره کول

له غالمغال څخه پرته ، داسي کښیناستل اومشوره کول چي دمسجد ادب وساتل شي اودچالمانځه ته زیان ونه رسیږي او دلمانځه دضروریاتو په هکله لکه دامام ټاکل دلمونځونو وختونه یا نورو اړوند شیانو په هکا مشوره کول ددنیا خبری نه دي . (فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۲۲ ).

**مسئله** : ددنیا خبري په مسجد کښی صحیح دي هغه چي ضروري وي . په دي شرط چي مسجد ته به دخبرو په نیت نه وی راغلی ، ، بي ضرورته مکروه دي چي پکښی سخت وعید راغلی دي.

(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۵۲ ).

## په مسجد کښی دنعت شریف ویل

**مسئله** : په مسجد کښی کښیناستل یا دریدل ، درسول الله ﷺ په شان کښي نعت ویل روا دي چي مضمون یي صحیح وي اوبهرني مفاسد پکښی نه وي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص، ۱۲۳ ).



**مسئله** :داسي قصاید چي پکښی دمسلمانانو بدی ویله شوي نه وي اوعبثیات پکښی نه وي په مسجد کښی یي ویل روا دي ، که بیا هم ونه ویل شي غوره کار دي

غوره داده چي داسي قصیدي وویل شي چي له اوریدونکوسره ددنیا رغبت کم شي . اوپه زړه کښی دیني سوز او جذبه پیدا کړي دژړا او زاریو میلان زیات شی ، زړه دالهي عشق لور ته مایل شي که داسي شعرونه زیات هم ویل کیږي روا دی .

(غنیه ۱۰۴ اوکتاب الفقه ج۱ ص ۴۵۹ ).

## په مسجد کښی پیرل اوپلورل

**مسئله** : که په مسجد کښی څوك دکتاب په هکله تقریر وکړي ، دکتاب فضائل بیان کړي ، دکتاب بیه وښیي اوپه مسجد کښی یي پلورل پیل کړي یا څوك کوم انځور جوړ کړي په منبر یي کښیږدي ، صفت یي وکړي اوهلته یي خرڅوي په مسجد کښی داسي کار کول څرنګه دي ؟

**ځواب** : په مسجد کښی داسي اخستل پلورل ناروا دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۲۳ او احسن الفتاوی ج ۲ ص ۴۴۱ ).

**مسئله** : له مسجد څخه بهر اخستل پلورل روا دي ، دمسجد دننه دراکړې ورکړې معامله لکه اخستل خرڅول ، مزدوري معلومول یا نور څه مکروه دي خو سوغات ورکول ، هبه کول مکروه نه دي ، دنکاح عقد خو په مسجد کښی مستحب دي . (کتاب الفقه ج۱ ص ۴۵۲ ).

**مسئله** : په مسجد کښی دکومی خزندی وژل ښه نه دي ، بهر دي وایستل شي او ودي وژل شي. (فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۲۳ ).

## په مسجد کښې دکعبې انځور (عکس) لګول

**مسئله** : دکعبې مبارکې یا درسول الله ﷺ دروضې تصویر چې دژوندي شي تصویر ورسره نه وي په مسجد کښې که ولګول شي پروا نلري خو چې خنګ ته وي اودلمونځ کوونکو نظر ورباندي نه لګیږي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۵۹ ).

**مسئله** : دلمانځه روح خشوع اوخضوع ده ، پرته له هغوی اوپرته له دي چې دزړه توجه دالله تعالی لورته وي ، لمونځ بي روح دي ، نو په مسجد کښې دقبلې په لوری انځورونه لګول له دي چې دلمانځه په حالت کښې خشوع اوخضوع ته زیان رسوي منع دي .

**مسئله** : ښکلې انځورونه اونقشونه ، چوکاټونه ، جنترې اونور لمونځ کوونکې غافل کوي ، په مسجد کښې رنګین دبریښنا ګروپونه ، دعبادت ځای بدلول دی په تماشا ځای باندی نو ځکه هم له کراهت څخه خالی نه دي .

(فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۲۳۵ دمسلم شرح ، نووی ج ۱ ص ۲۰۸ په حواله اوجذب القلوب ۲۱۲ ).

**مسئله** : په مسجد کښې داسي عکسونه اولیکنې چې دکعبې یا نبوی مسجد عکسونه وي یا داسي نقشونه دمسجد په دیوال لګول چې دلمونځ کوونکو توجي اړوی مکروه دی .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۳ ).

## دنبوي مسجد عکس ته مخ ګرځول او درود ویل

ترهرلمانځه وروسته دنقشې لورته کتل ، لاسونه تړل او درود ویل کوم شرعي اصل نلري نه په قران کریم کښې شته نه په نبوی سنتو کښې اونه هم دامت دصالحانو په قول اوفعل کښې هغه درود ویل چې په لمانځه کښې ویل کیږي هغه غوره دي ترلمانځه وړاندی او وروسته چې څومره توان



لري په ادب سره کښېنيي او درود دوايي داستره نیك مرغي او دبرکت وسیله ده رسول الله ﷺ خو را زیات حق لری او په حدیث شریف کښې ددرود دویلو لوی فضیلت بیان شوی دي

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۴ ).

## په مسجد کښې دانځور لرونکې کتاب لوستل

**پوښتنه** : کوم کتاب چې پکښې انځورونه وي آیا په مسجد کښې دهغه لوستل صحیح دي ؟

تصویرونه په اور لګیت او روپي هم وي او داشیان په جیب کښې پراته وي.

**ځواب** : هغه انځورونه چې په روپیو یا اور لګیت وي هغوی خورا واړه وي ددي وړو تصویرونو په حکم کښې تخفیف شته روپي هم دارټیا وړشی دي چاره نشته دضرورتونو دپوره کولو لپاره به له ځان سره ساتل کیږی خلاصون ورڅخه مشکل دي ځکه پرته له انځور څخه پیسی نه موندلی کیږي اوداسي انځورونو ته ډیر نه کتل کیږی جذابیت پکښې نشته .

دکتابونو دانځورونو داحال نه دي دپیسو په انځورونو نه قیاسیږي نودهغه په هکله دي دتخفیف پلټنه نه کیږی مسجدونه باید له همداسي شیانو پاك وساتل شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۵۹ ).

## په مسجد کښې دمړه شوي شخص لپاره ختم کول

**مسئله** : ختم کول له لویانو څخه ثابت دي ختم کول او ثواب یې بخښل صحیح دي خوځوك دي دختم په کولو نه اړیستل کیږي که دچا زړه غوښتل ګډون په کو ی اوکه یې زړه نه غوښتل ګډون به نه کوی داسي څه

دي نه کوي چي ثابت شوی نه دي. (فتاوی محمودیه ج۱۲ ص ۴۱۸ ).

## دپیش لمې ( سحرۍ ) لپاره دمسجد په بام نغاره وهل

**مسئله** : دپیش لمی لپاره دبیدارولو په مقصد دودانۍ په بام دنغارې ( ډول وهل ) اجازه لري خو په مسجد کښې یا دمسجد په بام جواز نلري.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۲ ).

( تر مسجدبهر دامام دخونې په بام یا داوداسه دځای په بام دسحرې لپاره دبیدارولو نغاره وهله کیدلای شي. ( رفعت)

## دمسجد په بام دښکار لپاره گرځیدل

**مسئله** : دمسجد په بام دښکار کولو لپاره گرځیدل دي داهم جواز نلري چې ښکار مسجد ته په ننوتلو اړباسې خو يي ونیسی ، ځکه مسجد ناولی کوی.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۵۴ ).

**مسئله** : دکوترې ښکار جواز لري خودمسجد احترام هم لازم دي، نو په مسجد کښې دي کوتره داسې نه نیسی چي دمسجد بي احترامی وشي.

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۷۱ ).

## مسجد ته دنه تللو سوگند کول

**پوښتنه** : که څوك مسجد ته له ورتللو سوگند وکړي څه حکم لري ؟

**ځواب** : داسې ډول سوگند غلطی ده ، مسجد ته دي ځی اودسوگند دي کفاره ورکړي.

کفاره داده چې لس تنه بي وزله کسانو ته دي دوه وخته ډوډۍ ورکړي یا دي لسو تنو ته جامی ورکړي ، که داوس نلری دری ورځی دي پر له پسی



روژه ونیسی بیا دي داسې سوگند نه اخلې (فتاوی محمودیه ج ۴ ص ۱۲۱ ).

## دمسجد په دیوال کښې ددوکان الماری جوړول

**پوښتنه** : دسړك په غاړه یومسجد دي غولي يي دانسان ترقدهم دوه فوټه لوړ دي دمسجد خوا کښې یو وړوکی دوکان دي ، که هغه پراخوی الماری يي دمسجد په دیوال کې تر غولي لاندي راځی داجواز لري ؟

**ځواب** : که کوم ځای شرعا مسجد وبلل شي لاندی باندی ټول مسجد دي دمسجد په دیوال کښې لاندی الماری جوړول اوبیا مسجد ته کرایه ورکول ، جواز نلري. (فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۲ ).

**مسئله** : دمسجد په دیوال کښی ، که دیوال نه زیانمن کیږی ، دقران کریم او نورو دیني کتابونو دایښودلو لپاره تخته لگول صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۲۷ ).

## له مسجد څخه دوتلو لپاره تیمم کول

**پوښتنه** : که څوك په مسجد کښی بیده وي غسل ورباندی واوښت نو له مسجد څخه دوتلو لپاره غسل لازم دي ؟

**ځواب** : له مسجد څخه دوتلو لپاره تیمم ضرور نه دي خو که دکومو عوارضو له امله سمدستي وتل ورته گران وي بیا تیمم ورته لازم دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۵۱۲ کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۰۲ ).

## مسجد ته په رسیدلو کښیناستل

**مسئله** : سنت خو دادي چي څوك مسجد ته ورشي تر کښیناستلو وړاندي دوه رکعته لمونځ تحیة المسجد وکړي بیا کښیني خو څوك چي لومړی کښیني نو دا ( ترك اولی ) دي . (فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۱۲ ).

**مسئله** : اولی اومستحب داسي دي چي څوك مسجد ته ورددننه شي ، که یي اودس وو اودوخت گنجایش وو نو بیا دوه رکعته تحیة المسجد کوي بیا کښیني ، داچي اوس داسي رواج شوي دي چي لومړی کښیني بیا تحیة المسجد لمونځ کوي ، کوم شرعي اصل نلري .

( فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۳۲ دردالمحتار ج ۱ ص ۷۳۵ په حواله ، بخاري ج ۱ ص ۲۳ اومسلم ج ۱ ص ۲۴۸ ).

**مسئله** : تر کښیناستلو وړاندی تحیة المسجد کول افضل دي خو په کښیناستلو سره نه ساقطیږی که له کښیناستلو سره سم دجماعت لمونځ پیل کیږی همدا فرض دتحیة المسجد ځای هم نیسي که جماعت وروسته کیده ولاړ دي سي اوتحیة المسجد دي وکړي . (احسن الفتاوی ج ۳ ص ۴۸۲ ).

**مسئله** : دسنتو اونفلو کول په کور کښی غوره دي ، خو که داویره وه چي په کور یا لاره کښی پریشاني پیداکیږي ، خشوع اوخضوع نه حاصلیده بیا په مسجد کښی کول یي غوره دي که په غیر ضروري خبرو اخته کیده بیا دي هم په مسجد کښی کوي که هرځای خشوع اوخضوع زیاته پیداکیدله سنت او نوافل هلته کول غوره دي .

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۷ ددرمختار باب الوتر ج ۱ ص ۷۳۸ په حواله ).

**مسئله** : دمسجد دننه اوبهر فضیلت سره برابر دي .

(فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۲۲۲ ).



## دتحیة المسجد حکم

**مسئله** : مسجد ته په ورننوتلو دوه رکعته لمونځ کول دتحیة الوضوء اوتحیة المسجد دواړو ځای نیسی بلکي مسجد ته په ننوتلو که هر لمونځ وشي تحیة المسجد اداء کیږي ، که داوداسه داندامو تر وچوالی وړاندي دوه رکعته لمونځ کیږی هغه تحیة الوضوء بلل کیږي .

(احسن الفتاوی ج ۳ ص ۴۸۱ ).

**مسئله** : دمازیگر له لمانځه تر ماښام پوري کوم نفل لمونځ روانه دي خو دلمر ترډوبیدلو وروسته دماښام تر لمانځه وړاندی دوه لنډ رکعته کول روا دي خو غوره دادي چي دماښام تر لمانځه وړاندی نفل ونشی ، په دي نوافلو کښی دکوم سورت اختصاص نشته .

(احسن الفتاوی ج ۳ ص ۴۸۰ دردالمحتار ج ۱ ص ۳۴۹ په حواله )

**مسئله** : له مکروه وخت څخه پرته که سړی هر وخت مسجد ته ننوزی تحیة المسجد سنت دي له پنځه وخته لمونځونو سره هیڅ اړیکي نلری که دپنځگونو لمونځونه لپاره مسجدته ننوزی تر کښیناستلو وړاندي یا وروسته فرض یا سنت لمونځ پیل کیده دتحیة المسجد لمونځ وربادي ادا کیږی دتحیة المسجد مستقل دوه رکعته کیږي .

(احسن الفتاوی ج ۳ ص ۴۸۳ ).

**مسئله** : که مکروه وخت نه وو ترجماعت وړاندی مسجد ته په ورتلو تحیة المسجد لمونځ کیږی که جماعت لمونځ پیل کیده داتحیه ساقطیږی که څوځله مسجد ته ننوت او راوت یوزای یوځل دي تحیة المسجد وکړي .

(فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۲۴۲ کتاب الفقه ۱.۵۲۷ ).

## په مسجد کښې دجنازې لمونځ

**مسئله** : په مدینه منوره کښې دجنازې دلمانځه لپاره دنبوی مسجد ختیز لور ته ځای دي دپنځه وخت لمونځونو لپاره په جوړ شوي مسجد کښې دجنازې لمونځ البته پرته له عذره له کراهت څخه خالي نه دي که یې کراهت نه درلودلای ، رسول الله ﷺ به بیل ځای نه ورته غوره کاوو . مسجد به کافی وو خو رسول الله ﷺ ورته بیل ځای جوړ کړ .
(فتاوی محمودیه ج۲ ص ۳۸۷ دفتح الباری ص۱۲۰ ج ، ۳ په حواله ).

**مسئله** : دجنازې لمونځ که په مسجد کښې کیده داصلاح لپاره له جماعت څخه یې گوښه کیدل غوره دي .

**مسئله** : سره له دې چې خلگ پوهیږي اوپه رواجي ډول دجنازې لمونځ دمسجد په دننه کښې کوي نو له جماعت اوامامت سره دې معذوري ښکاره کړي. (فتاوی محمودیه ج۱۰ ص۲۹۸ ).

**مسئله** : بې عذره اوپرته له مجبوری ،مسجد ته دجنازې دننه کول منع دي اومکروه دي ځکه دناولتیا ویره یې ده ځکه کله ورڅخه وینه یانور څه تري خارجیږي .
(فتاوی رحیمیه ج۵ ص۱۰۵ بخاری ج۱ ص ۱۷۷ مسلم ص ،۳۱۹ ج۱).

## جنازه بهر خو امام اومقتدیان دننه

**پوښتنه** : که جنازې بهر کښېښودله شې له مسجد څخه دقبلې په لوری یوه کړکې وي ، امام او مقتدیان دننه ولاړ وي نو حکم یې څه دي ؟

**ځواب** : په دې صورت کښې درمختار کراهت ښودلی دی خو شامي دخینې فقهي جزیاتو له امله پکښې وسعت ښودلی دي .
(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۵۷ ).



(( په نبوي مسجد کښې هم جنازه له مسجد څخه دقبلې لورته ږدي امام اوځو تنه مقتدیان بهر او نور دننه دریږی د جنازې لمونځ کوي دحرام په مسجد کښې جنازه دکعبې له دیوار سره ږدي خو هلته مجبوری ده ځکه که جنازه بهر کښېږدي مقتدیان تر امام وړاندې دریږي ( محمد رفعت قاسمی ) .

## دمسجد په ویرانه کور جوړول

**مسئله** : داسې ځمکه چې وقف اومسجد والی یې ثابت وي خو ډیر وخت لپاره هغه ځای وران اوځمکه یې خاره پاته شوي وي بیا هم هغه مسجد دي اوترقیامته مسجد دي له هغو ځایه دخوړلو ، بیده کیدلو یا نور کار اخستل حرام دي که چاد دغسې چا مرسته وکړه گنهکار دي .
(فتاوی رحیمیه ج٦ ص۱۰۰ ).

## دمسجد بیمه کول

**پوښتنه** : دمسجد بیمه کول څرنگه دي ؟ ځکه پخوا مسجد اودهغه لوازم سوځول شوي وو .

**ځواب** : که دمسجد دخوندیتوب بله لاره نه وي مجبورا یې بیمه کول صحیح دي . خوله هغه څخه کوم په سود پیسې چې تر لاسه کیږی په مسجد کښې دې نه لگیږي . (محمودیه ج۱۵ ،ص۲۲۹ ).

**مسئله** : کوم مبلغ چې دبیمې په ترڅ کښې ادا کیږی ، هغه دمسجد مدرسې او عبادت ځای کیږی اوزیاتی دي په بې وزله خلگو وویشل شي .
(فتاوی رحیمیه ج٦ ص ۱۲۷ ).

## دمسجد له خادم سره مراعات کول

پوښتنه : که دمسجد پخوانی خادم بوډا شو اوس یي کم کار کاوو هغه ته دمسجد له شتمني څخه پوره معاش ورکول کیدلای شي ؟

ځواب : هو دهغه دوس وړ کار دي ورته وسپارل شي همدومره گنجائش شته .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۲۹ ).

## دمسجد دخادم داولاد دوراثت حق

پوښتنه : که دچا پلار اونیکه په کوم مسجد کښی امام یا مؤذن وو خو اوس یي لمسی هغه کار کولای نه شواي امام اومؤذن نور کسان وټاکل شول خو دپخوانی امام یا مؤذن لمسی ته هغه څه چي پلار اونیکه ته یي ورکول ورکول کیدل خو اوس کلیوال دهغه دبي ځایه حرکتونه له امله هغه مراعات ورڅخه غوځوی شرعي حکم یي څه دي ؟

۲ : دهمدي شخص دپلار اونیکه چي کومه خونه وه اودمسجد دخذمت په بدل کښي ورکړل شوي وه اوس هم پکښی داشخص اوسیږی داشرعا جائز دي ؟

ځواب :۱: دمسجد کوم خادم (امام یا مؤذن) ته چي کوم مراعات ورکول کیږی هغه دهغه ترشخص پوري نه بلکی ترخدمت پوری اړه لري هلته وراثت پکښی نشته چي دخادم تر وفات وروسته یي ورثه دعوه وکړي .

۲ : دادهستوگنې ځای (خونه یا کور) هم دهغه پلار اونیکه ته دخدمت په بدل کښی ورکړل شوي وو اوس چي خدمت ختم شوي دي اوخادم هم وفات شو دي نو اولنی اولاد ته یي دوراثت په دول حق نه رسیږی .



دمسجد ځمکه ،باغ ، دوکان ، کور چي دمسجد ملکیت وي که هغه ورته چا وقف کړي وي یا مسجد اخستی وي په هغوی باندي هم دچا غاصبانه قبضه روا نه ده . اوله هغه څخه لاس اخستل ضروری دي

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۱۷ ).

## حدیث شریف لیکل او په مسجد کښی ځوړندکول

پوښتنه :: په توره تخته حدیث لیکل اوپه دروازه ځوړند کول ورسره دځان لپاره دعا غوښتل څرنگه دي ؟

ځواب : دځان یا کومی تولنی لپاره ددعا غوښتل منع نه دي حدیث لیکل او ورسره دعا غوښتل هم منع نه دي نوم که وروسته وړاندی ولیکی هم څه ستونزه نه ده خو دالیکنه یوازی دشهرت لپاره نه وي ، بلکی دالله ﷻ درضا لپاره دحدیث او احکامو خپرول پکښی هدف وي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۴۱ ).

## دمسجد په دیوال اعلان ځوړند کول

دمسجد په دروازه یادیوال داعلانونو ځوړند کول له دوو وجهو ناروا دي یوداچي دمسجد دیوال دشخصی مقصد لپاره استعمالول حرام دي ، فقهاء لیکی چي چاته روانه دي چي دمسجد په دیوال دخپل کور پښتول (شهتر ،گاډر) کښیږدي دوهمه وجه داده چي دمسجد پاك ساتل اواحترام کول یو امر دي که یي په دروازه یا دیوال ، اعلانونه ځوړند کیږی ، دپاك ساتلو اواحترام خلاف کار به شوی وي .

آیاخوك دیوه امیر دکور په دروازه داعلان دلګولو جرئت کولای شي ...
دخپل کور په دروازه اودیوالونو مختلف ډول اعلانونه ځوړندول زغملای
شي
(ستاسو مسائل ج ۳ ص ۱۴۲)

مسئله : دمسجد دننه دي دتجارت ځای نه جوړیږي ، دتجارت اوکاروبار
شیان دي هلته نه ایښودل کیږي ، دسحر او افطار (پیش لمی او روژه مات
) داسی نقشه چی ورسره دکوم دوکان هم لیکل شوی وي دمسجد په بهرنۍ
دروازه کښی دي ځوړند کیږي له مسجد څخه دي دتلو راتلو لاره نه
جوړیږي ، نه دنارینو اونه دمیرمنو لپاره ، ښځې دي هم مسجد ته له تللو
څخه منع کیږي

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۹)

## په مسجد کښی اعلان لرونکې جنتري ځوړندول

مسئله : نن سبا ځینی داسی جنتری ګانی خپریږی چی ، دلمانځه وختونه ،
قرآنی آیاتونه او یاددینی مضمونونو برخی پکښی لیکل کیږی او ورسره
تجارتی اعلان هم وي خو داعلان اندازه تر نورو شیانو کمه وي دداسی
جنتری ګانو هدف چی اصل مقصد ددینی احکامو خپرول وي ورسره
ضمنی اعلان څه اعتبار نلري . (فقهی مسائل اووم توک ۲۸۹ مخ).
«خو داخیال ساتل په کار دي چی په جنتری دژوند موجود انځور نه وي
اودقبلې لور ته ځوړند نه وي چی دلمونځ کوونکو حضور خرابوي .
(رفعت)».



## که له غیر مسلم سره دمسجد امانت ضائع شي

پوښتنه : متولی له ځان سره مسجد دپیسو ایښودل خوندی نه بللی کوم
مسلمان هم هغه دامانت په توګه نه ساتلی ، متولی دکلیوالو په امر هغه
پیسی له غیر مسلم شخص سره کښیښودلی ، هغه مالدار وو عام اوخاصو
ورسره پیسی ایښودلی خو که هغه بی شتو شو دمسجد پیسی ورځخه
ضائع شوی ورسره هیڅ وجه نه وه چی داپیسی تری حصول کړی ، ددي
زیان ضامن متولی دي که کلیوال ؟

ځواب : که له متولی سره دهغو پیسو دضائع کیدلو ویره وه ، دخوندی
توب یي بله لاره هم نه وه اودکلیوالو په خبره یي هغه له غیر مسلم سره
امانت کښیښودلی اودهغو دبیاترلاسه کولو هیله یي غښتلی وه نوبیا نه
په متولی ضمانت راځی اونه په کلیوالو.
(فتاوی محمودیه شپږم توک ۱۸۱ مخ).

## که له مسجد څخه غلا وشوه ایا تاوان یي دمتولی په غاړه دي ؟

پوښتنه : دمسجد اړوند په خونه کښی سامان وو تاله ورته لګیدلی وه
غله هغه سامان غلا کړ آیا متولی پکښی ګرم دي ؟

ځواب : دمسجد په اصل دروازه کښی تاله (قلف) نه وي لګیدلی ترڅو
هر څوك عبادت ته راشی په مسجد کښی محافظ هم نه وي یوازی
دلمونځونو په وخت مؤذن اوخادم راځی نو په داسی حال کښی دسامان
دخونی دروازه تاله کول دحفاظت لپاره کافی دي اوپه متولی ضمانت نه
اوړي اوکه هغه ځای بي امنه وو داسي غلاوی شوي وي بیا یوازی تاله
لګول کافی نه دي اوبل حکم لري .

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ١٧٧)

## که دمسجد امانت شیان غلا کړای شی

**پوښتنه** : له یوه سړی سره دمسجد امانت شتمني ایښې ده هغه غلا شوې بیرته ترلاسه شوخو نور نه ، په دي صورت کښې مسجد ته یي ورکول لازم دي ؟

**ځواب** : که یي امانت مال له خپلی شتمني سره ګډ کړی وو دمسجد پوروړی دي او که یي بیل خوندي ساتلی وو وربانديي ورکړه یي نشته کومه غلاشوي شتمني چي بیرته ترلاسه شي هغه به ورکوي .

(فتاوی محمودیه ج ١٠ ص ١٧١).

## له مسجد څخه بهر دمسجد دشتمنی لګښت

**پوښتنه** : دجمة الوداع یا اخترونو په ورځو کی خلګ له مسجد څخه بهر په عمومی سړك لمونځونه کوي ، آیا دمسجد په پیسو هلته په کرایه فرش یا نور څه راوړل کیدلاي شي ؟

**ځواب** : داکار دمسجد دلمونځ کوونکو لپاره دي څه حرج پکښې نشته .

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ١٨١).

**مسئله** : که یوه زانیه مسجد ودان کړی حکما هغه مسجد دي دورڅه وو حق پکښې نشته دچا تصرف پکښې دوقف دحکم په خلاف پکښې ناجائز دي خوپکښې لمونځ کول پوره ثواب نلری فرض له غاړي اوړي .

(امدادالاحکام ج ١ ص ١٤٤١ احسن الفتاوی ص ٤٣٣ ، ج ٦).



## دفاحشی شتمنۍ په مسجد کښې استعمالول

**پوښتنه** : یوه ښځه له حرامی لاري خوراك څښاك پیداکوي خو نور دلاس کارونه لکه اوبدل یا ګنډل هم کوی ، له همدي پیسو دمسجدلپاره فرش یا نور څه اخلی حکم یي څه دي ؟

**ځواب** : دهمداسي شیانو استعمال په مسجد کښې صحیح دي ځکه دایي په عین حرامه ګټه اخستي نه دي .

(فتاوی محمودیه ج ٦ ص ٢٠٣ اوکفایت المفتی ج ٣ ص ١١١ ).

## معاش اخستل اوپه مسجد کښې تدریس کول

**مسئله** : که څوك دمسجد لپاره مثلا حفاظت ته یي په مسجد کښې کښیناست یا بل ځای نه وو په مسجد کښې یي درس درلود روا دي خو که یي همدا کسب وو بیا په مسجد کښې کښیناستل اوتدریس کول دمسجد داحترام خلاف دي .

(فتاوی محمودیه ج ٦ ص ١٨٢ امداد الاحکام ١، ٤٤١ ).

## دمسجد په یوه برخه کښې درس ویل

**پوښتنه** : دمسجد په لاندي پوړ کښې لمونځونه کیږي په پورتني پوړ کښې یي ماشومان زده کړه کوي دمسجد دودانولو په وخت کښې داخیال نه وو چي دلته به ماشومان زده کړه کوي هغه ځای مسجد په نظر کښې وو اوس پورته د جماعت لمونځ کیدلاي شي ماشومانو ته زده کړه ورکول کیدلاي شي ؟

**ځواب** : داسي چي لاندیني حصه مسجد وي پورتني برخه یي هم مسجد ده دوهم ځل جماعت دي په پورتني برخه کښې نه کیږي دماشومانو لپاره دي بل ځای ومومي که بل مناسب ځای نه وو مجبورا ماشومانو ته په

مسجد کښې زده کړه صحیح ده خو دومره واړه ماشومان نه چې هغوی
دولي اوناولي توپیر ونکړای شي ناپاکي راوړی بولي کوي داهم ضرور ده
چې دمسجد احترام وساتل شي مثلاً ماشومانو ته سخت الفاظ اوسپک
الفاظ ونه ویل شي سزا ورنکړی شي ونه وهل شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۰ او احسن الفتاوی ج ٦ ص ٤٥٨ ).

**مسئله** : که دقران کریم اودیني زده کړو ته بل ځای نه وو نو په مسجد
کښې جواز لري خو دمسجد احترام لازم دي هلته به شورا اوشغب نه وي
داسي کار به نه کوي چې دمسجد داحترام خلاف وي دلمانځه په وخت
کښې به زده کړه نه وي ترڅو خلکو ته په لمانځه کښې ضرر نه وي په
مسجد کښې به داسي ماشومان زده کړه نه کوي چې په مسجد کښې بولي
کوي ، داوبو لوښې ناولې کوي یانوز وراني رسوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۸ ).

## دمسجد داړوند قران کریم استعمال

که کوم قران کریم یا یې جزونه دمسجد لپاره وقف شوي وو ، په مسجد
کښې هغه هرڅوک استعمالولای شي که لمونځ کوونکي وي اوکه
دمدرسي طالبان (فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۳۸ ) (( خو خپل کور مدرسي یا
بل مسجد ته یې وړل جواز نلري ،محمد رفعت قاسمي ))

**مسئله** : قران کریم چې په مسجد کښې ایښی وي هغه وقف دي ، هرڅوک
راځی هلته یې تلاوت کوي دکورته وړلو اجازه یې نشته بدلیدل یې ناجائز
دي وقف شوي شي په بدل ورکولو په ملکیت کي راتلای نشي که دچا
ورته ضرورت وي دهغه په ادرس دي بل وومومي .

(فتاوی محمودیه ص ۲۹٦ ، ج ۱۲ ).



**مسئله** : مسجد ته دوقف شوي قران کریم وړل جائز نه دي که ورته اړتیا نه
وه بل نژدي مسجد ته چې پکښې اړتیا وي ورکول یې صحیح دي .

(فتاوی رحیمیه ص ۴ ، ج ۷۷ ).

**پوښتنه** : په مسجد کښې قران کریم په جزونو بیل ، بیل وي ، هغه کورته
دختم لپاره وړل کیدلاي شي ؟

**ځواب** : که داپاري اوجزونه ددي لپاره ورکړل شوي وو چې خلګ دي
دختم لپاره کورونو ته وړي بیا څه ممانعت نشته .

(فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۲٥٦ ).

## دمسجد قرآن کریم زده کوونکو ته ورکول

**پوښتنه** : په مسجدونو کښې خلګ پرته له اجازی قران کریم ږدي ، شمیر
یې زیات وي څوك یې نه تلاوت کوي اواخر خرابیږي اوبیا یې خلګ
خښوي که داسي قران کریم بې شتو زده کوونکو ته ورکړل شي اوهغوئ
یې په ښوونځی کښې یابل ځای ولولي جواز لري ؟

**ځواب** : چاته په ملکیت کښې ورکول یې جواز نلري ، نه مدرسي ته
ورکول کیدلاي شي خو که زیات وي ورته اړتیا نه وي بل نژدي مسجد ته
چې ورته ضرورت لري ورکول کیدلاي شي که ترمسجد بهر لیکل شوي وو
چې دلته پرته له اجازی قران کریم مه ږدي خوبیا هم چا کښیښود نو هغه
مدرس یا کوم بې شتو سړی ته ورکول کیدلای شي .

احسن الفتاوی ج ٦ ص ٤٥٢ ).

## په مسجد کښې له اجازې پرته دولتي برېښنا استعمالول

پوښتنه : پرته له اجازې ، دقدر په شپه یا بل وخت له دولتي برېښنا ګټه اخستل څرنګه دي ؟

ځواب : داسې کول غلا ده ، ناروا ده مسجد داسې روښانه کول ګناه ده که داکار دمسجد اداري خلګ کوي او که نور تو پیر نلري که څومره برېښنا همداسې مصرف شوې وه پیسې دې دبرېښنا دفترته ورکړي .

(نظام الفتاوی ج۱ ص۳۰۴).

«بده معامله غیر قانوني کړه وړه تل عزت ته زیان رسوي ، عزت ساتل واجب دي ترک دواجب بله ګناه ده ، نو ځان ورڅخه ساتل ضروري ده .

(محمد رفعت قاسمی).

مسئله : په مسجدونو کښې زیات ګروپونه لګول ، داسراف په حکم کښې دي دا ړتیا په اندازه لګول یې جائزدي .

(نظام الفتاوی ج۱ ص ۳۱۴ دشامي ج۱ ص ۴۴۲ په حواله).

## دمسجدعواید داوقافو له اداري پټول

پوښتنه : که داوقافو اداره دمسجدونو اوهدیرو یا نورو ځایونو دخوندي توب لپاره دمسجد له عاید څخه په فیصدي حساب پیسې ګرځوي که څوك دمسجد اړوند دوکانونو یا نورجایداد په واسطه راغلي عاید داوقافو له اداري څخه پټ وساتي آیا داسې کارغلا ده ؟ همدا زیاتي شوي پیسې په مسجد کښې مصرف کیدلای شي ؟

ځواب : داسې پیسې په مسجد کښې مصرف کول مباح دي خو داسې معامله کول قانوني غلا ده ، ځان ورڅخه ساتل واجب دي نو دمباح لپاره خوبه واجب نه پرېښودل کیږي او داسې څه ته دې اجازه نه ورکوي .

(نظام الفتاوی توک۱ ص ۳۰۳ )



## دخاورو تیل په مسجدکښې لګول

مسئله : دخاورو تیل په مسجد کښې لګول منع دي خو که نور تیل نه وو دخاورو تیل داسې پاك شوي وو چې بوی یې نه درلود بیا دي وسوزول شي جواز لري .

(فتاوی محمودیه ج۲ ص ۴۲۰ او ج ٦ ص ۱۲۳ )

## په مسجد کښې به څراغ ترڅو پورې بلیږي

مسئله : چې دخلګو دراتللو نوره توقع نه وي څراغ دي لري کیږي .

(فتاوی محمودیه ج۲ ص ۴۲۲ ، امداد الاحکام ج۱ ص ۴۴۷ ).

مسئله : که چا مسجد ته شمع یا نور څه ورکړل که هغوئ ته په مسجد کښې ضرورت نه وو اودوقف کوونکي اجازه وه هغوی دي خرڅ کړي اوپه بیه دي دمسجد نور ضروریات پوره کړي .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص ۱۷۲ او ج۱ ص ۴۷۱ ).

مسئله : په مسجد کښې ناپاکه تیل لګول مکروه دي .

(رد المحتار ج۱ ص ۲۱۹ ).

مسئله : دمسجد څراغ کورته وړل ناجائز دي خو دکور څراغ مسجد ته وړل جواز لري .

(عالمګیري ج۱ ص ۱۷۰ ).

مسئله : ترڅو عام خلګ لمونځونه کوي په مسجد کښې دي څراغ لګیږي داوداسه اوغسل په ځایونو اولاره کښې هم څراغ لګول کیدلای شي البته دضرورت په اندازه .

(فتاوی محمودیه ج۱۰ ص ۱۴۹ اوعالمګیري ج۱ ص ۱۷۰ ).

مسئله : ترلمانځه وروسته که څوك دمسجد دڅراغ رڼا ته کتاب ګوري یا چاته درس وایي دشپې تر دریمې برخې جواز لري اوزیات نه .

(بحر الرائق ج ۵ ص ۲۵۰ ).

مسئله : دمسجد فرش دلمانځه اوجماعت لپاره هوارول صحيح دي که فرش تل هموارو ي هلته که کوم دطريقه مرشد اومريدان يي کښيني باک نلري خو که فرش تولیږي بيا يي دکښيناستلو لپاره مستقل استعمال ښه نه دي.

(فتاوی محموديه ج ۱۰ ص ۱۴۹).

## دمسجد دتيلو خرڅول

مسئله : که څوك مسجد ته تيل ، پکی يابل څه ورکړي اودخرڅولو اجازه ي وي هغه خرڅول کيدلاي شي. (فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۰۴).

## دمسجد تيل اونورڅه دامام په استعمال کښی

مسئله : که څوك څۀ شی مسجد ته ورکوي او امام ته وايي داشيان مي تاته درکړل ، خپل کورته يي يوسه استعمال يي کړه نو امام ته يي استعمال صحيح دي خو له ورکوونکی پرته که بل څوك اجازه کوي صحيح نه دي. داچي څوك څه مسجد ته ورکړي اوداسي وانګيرله شي چي داورکړه يي امام ته په کور کښی داستعمال اجازه ده داخيال غلط دي.

(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۰۵ امداد الاحکام ۱، ۴۴۷).

## دمسجد سامان خرڅول

پوښتنه : که په مسجد کښی سطل (بوکه) فرش يا نور ترضرورت زيات وي که هغه خرڅ شي اوپيسی يي دمسجد په ضروریاتو مصرف شي جواز لري؟

ځواب :: کوم شيان چي دمسجد دارتيا دپوره کولو لپاره اخستل شوي ، که هغوئ وپلورل شی او پيسی يي په مسجد ولګول شی صحيح دي



خو هغه شی چي دمسجد په پيسو اخستل شوي نه وي اوچا ورکړي وي که ورکوونکی دخرڅولو اجازه ورکړي وه بيا يي خرڅول صحيح دي.

(فتاوی محموديه ج ۱۲ ص ۳۰۴).

مسئله : کوم شيان چي مسجد ته وقف شوي دي پلورل يي ناجائز دي کوم شيان چي وقف شوي نه دي خودعا دي جاري ضرورتو نو لپاره اخستل شوي وي ، که يي اړتيا پوره شوه خرڅول يي صحيح دي ، که مسجد وران شي سامان دي نژدي مسجد ته ورکړي اوځمکه دي وساتله شي چي بي احترامی يي ونشي.

(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۱۹۹ درد المحتار ج ۳ ص ۵۷۵ په حواله).

مسئله : که شرعی مسجد وي ، هغه دتل لپاره وقف دي دهغه ځمکه خرڅول يا په عاريت سره ووکول ناروا ده.

(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۱۱).

## دمسجد زوړ سامان اخستل

پوښتنه : که يوخادم ودان شوي مسجد دپاخه جوړښت په هيله وران کړي ، دهغه سامان په بل مسجد خرڅيدلای شی يا يي څوك اخستلای شي؟

ځواب : غوره داده چي همغه سامان په همدي نوی مسجد کښی بيا استعمال شی که يي هلته استعمال مشکل وي دکليوالو يا حاکم په رايه دي خرڅ اوپيسی دي په مسجد مصرف شی په اخستونکی قيد نشته اختيارلری دبل مسجد لپاره يي اخلی که دخپل کور لپاره.

(فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۰۸ کفايت المفتی ج ۳ ص ۱۲۳).

## دوران شوي مسجد سامان مدرسي یامسافر خانې ته ورکول

مسئله : که کوم مسجد وران وي دلمونځ کولو پکښې هیڅ صورت نه وي هغه ځای دي خوندي وساتل شي اتفاقی خبره داده چي هغه تل مسجد دي سامان دي بل مسجد ته ورکړل شي که هلته ورته اړتیا نه وه داهل حل اوعقد کسانو په رایه دي وپلورل شي قیمت دي بل نژدي مسجد ته ورکړل شي خودمسجدسامان پرته له قیمت څخه په مدرسه یامسافرخانه یا بل ځای مصرف کول صحیح نه دي که څه هم دي مسجد ته نژدي هم وي .

(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۵۰۴ ).

## وران مسجد خرڅول یا په کرایه ورکول

پوښتنه : که کوم ځای خلګ تللی وي مسجد همدغسی وران پاته وي هغه خرڅیدلاي شی ؟

ځواب : دوقف خرڅول ناروا دي وقف مالك نلری چي هغه وپلوري ، که هلته مسلمانان نه وي بیا هم دخرڅولو اختیار یي څوك نلری خوندي ساتل یي بهتر دي که یي څوك په زور غصب کړی اوبیا یي په بدل کښی پیسی ورکړي په هغو پیسو بل مسجد ودانول صحیح دي دوران مسجد سامان دي همدي دوهم مسجد ته ورکړي .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص ۱۸۳ ).

مسئله : که دزاړه مسجد دودانولو کوم صورت نه وي اوسامان یي ضایع کیده سامان دي بل مسجد ته ورکړل شی اوځمکه دي په دیوال احاطه شی که ددیوال دجوړولو پیسی نه وي دمسجد په لګیو دي هغه ځمکه وساتله شی یا دي هغه خرڅ اوپه پیسو دي دمسجد حفاظت وشی په بل شی دي پیسی نه لګیږي دمسجد ځمکه په کرایه هم نه ورکوله کیږي دساتلو هڅه دي وشي .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص ۲۱۳)



## دمسجد دمصرف لپاره دوقف شوي ځمکی خرڅول

مسئله : کومه ځمکه چي دمسجد دلګښت لپاره وقف شوي وي دهغی دخرڅولو اجازه نشته ، که څه هم دهغی په زیاته ګټه نوره ځمکه واخستله شي خوکه چا دمسجد ځمکه په زرو غصب کړه لاس ته کول یي ممکن نه وو بدل دي ومنی اوپه هغه دي بل ځای ځمکه واخلی دمسجد دلګښت لپاره دي وقف کړی که کومه وقف شوي ځمکه بی ګټی وه ، دهغی دخرڅولوهم اجازه شته چي په پیسو یي نوره ځمکه واخستله شی اووقف شی نو ځمکه ، ځای یا دوکان چي دمسجد دمصرف لپاره وقف شوي وي اودمجبوریت له امله خرڅه شی اوبیا له اخستونکی څخه کوم غیر حرکت پکښی ولیدل شی په خپله هغه یي ذمه واري نه دمسجد اهل یامشران .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص ۲۱۹ دشامی ج ۳ ص ۵۰۷ په حواله ).

## دمسجد په پیسو داوداسه اوبه تودول (ګرمول)

مسئله : کومی پیسی چي دمسجد دضروریاتو دپوره کولو لپاره ټولی شوي وي په هغو پیسو دیخنی په وخت کښی دلمونځ کوونکو لپاره اوبه تودول جائز دي ترڅوپه اسانی سره اودس وکړای شي .

(فتاوی محمودیه ج۱۸ ص ۱۹۰ ).

مسئله : که دچت لرګی لویدلی اودکار ورنه وي په هغوی داودس کولو لپاره داوبو تودول روا دي .

(فتاوی محمودیه ج۱۵ ص ۲۰۴ ).

## دمسجد تودې اوبه که لمونځ نه کوونکی استعمال کړي

مسئله : کومې اوبه چې داودس کوونکو لپاره تودیږي ،هغه دهغه چا
لپاره چې لمونځونه نه کوي روانه دي چې په جامو پريمنځولو يا نورځه يې
استعمال کړي کورته دمسجد دتودو اوبو وړل هم صحيح نه دي دمسجد
په انګړ کښې دي اودس کوی که تودي اوبهٔ ماخستن پاتـه کيږي اوتر
سهار پورې سړيږي بيا يې هم بل ځای استعمال روا نه دي .
په تودو اوبو اودس کول يا که په کومه جامه نجاست وي هغه پريمنځل
جائز دي خو يوازي دجامو پريمنځل صحيح نه دي .
غوره خبره داده چې په کور کښې اودس وکړای شي اومسجد ته راشي خو
هرچاته دااسانه نه ده داعرف هم عام شوي دي چې په مسجد کښې داودس
اوغسل انتظام کيږي نو که مسجدونه داکار کوی غلط کار نه دي دلمونځ
کوونکو لپاره سهولت دي اودجماعت دلمانځه پابندي ورسره زياتيږي .
(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۳ ).

## دمسجدتودې اوبه کورته وړل

پوښتنه : که چا په خپلو پيسو مسجد ودان کړ اودهغه دنورو اړتيا وو
دپوره کولو لپاره يې دوکان يا کوم ځای وقف کړ په هغو پيسو يې دلمونځ
کوونکو لپاره اوبه هم تودولی آيا هغه څوك چې لمونځ نه کوی دلته غسل
کولای شي يا هغه اوبه کورته څوك وړلاي شي ؟
ځواب : که وقف کوونکی داوبو دتودولو اجازه نه وه کړې دااوبه تودول
روا نه دي که يې دهرچا دغسل لپاره اجازه ورکړې وه هم صحيح دي داچې
دااوبه دمسجد په روپو نه توديږي بلکې کليوال يې تودوي نو استعمال
يې هم دهغوی په اجازه پورې اړه لري .
(فتا... ج۲ ص ۴۵۵ ).



## دمسجد داوبو له ذخيرې ( ټانکي ) څخه کور ته اوبه وړل

پوښتنه : دمسجد داوبو له ذخيرې څخه کور ته اوبه وړل څرنګه دي ؟
ځواب : دااوبه دځا داوبو په څير نه دي چې هرڅوك يې کورته يوسی
بلکې دادمنګی داوبو حکم لری ، چې هغه يې مالك دي څوك داحق نلري
چې پرته له اجازې څخه يې کورته يوسې .
( فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۷ احسن الفتاوی ج ۶ ص ۴۴۷ ).

## په تودوخه او اورښت کښې دمسجد بهرنی غولی خالي پاته کيدل

پوښتنه : که ديوه مسجد بهرنی غولی ډير لوی وي په تودوخه او اورښت
کښې هلته دريدل مشکل وي که دهمديغولی شمال يا جنوب لوری ، څه
برخه لوړه اوپټه کړي اوخلګ هلته لمونځونه کوي ، نور غولی خالی وي
ايا داسي لمونځونه کول جواز لري ؟
ځواب : که داسی لوړ اوپټ ځای په مشوره سره جوړيږی څه ستونزه نلري
دمسجد دننه صفونه اودلته صفونه بايدسره متصل وي که غولی پاته دي
باك نلري که تودوخه زياته وي اوټول خلګ په همداسی ګوښه کښې دريږی
هم څه حرج نشته . ( فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۳۳ ).

## په مسجد کښي ګرځيدل او وظيفه کول

مسئله : سهار اومازيګر وظيفه کوونکی په مسجد کښی ګرځی او وظيفه
کوی ،ګرځيدل دوظفی جز نه دي . افضل او غوره دادی چې په يوه ګوښه
کښی کښيني اووظيفه وکړی که دجماعت وخت نژدي وو اوورباندی خوب
راغی بيا ولاړيدل وګرځيدل باك نلری خو مستقل ګرځيدل ، که سهار وي
که مازيګر يابل وخت دمسجد له مقصد او حال سره خلاف کار دي .
( فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۸۴ ).

مسئله : تسبیح ویل په ناسته ولاړه هرډول صحیح دي خو بې ضرورته په مسجد کښې ګرځېدل نشته .

(فتاوی محمودیه ج ۶ ص ۱۰۷ احکام القران ج ۲ ص ۲۲۳ ).

مسئله : په بازار او دلغو په نورو ځایونو کښې چې خلګ په خپلو کارونو لګیا وي اوتلاوت نه اورې هلته په لوړ اواز تلاوت کول منع دي ورو ورو پرته له غږ څخه دي تلاوت اوذکر کوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۸۲ ).

## په مسجد کښې د باد وتل

مسئله : احتیاط اوادب دادي چې په مسجد کښې په قصدي توګه باد ونه ایستل شي که بیده وي یا غیر ارادي ووزی داخونو عذر دي هغه خوك چې دخوب بل ځای لري په مسجد کښې ورته بیده کیدل مکروه دي دجاهلانو داخبره چې که دچا په مسجد کښې باد ووزی هغه ملایکییی په خوله کښې بهر باسی بالکل غلطه ده له مبارك حدیث څخه ښکاره ده چې ملایکو ته له بدبوی څخه زیان او اذیت رسیږي .

(فتاوی محمودیه ج ۶ ص ۲۰۷ در مختار ج ۱ ص ۲۸۷ په حواله ).

مسئله : دفقهاوو په نظر په مسجد کښې دباد ایستل منع دي که خوك دناروغی ستونزه لری یا ژر ژر بهر وزی یا همداسی مکروه کار کوي احتیاط ورته دادي چې همداسی شخص په مسجد کښې اعتکاف ونکړی دعا وکړی اوددي هیلی اجر دالله ﷻ څخه وغواړي .

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۸۰ ).

مسئله : درمضان له میاشتی پرته هم په مسجد کښې نفلی اعتکاف کیدلای شي اوهمداسي معتکف په مسجد کښې اوسیدلای شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۸۲)



## دمسجد خوا کښې په سړک موسیقۍ غږول

مسئله : په عام سړك ( لاره ) تیریدل دهر چا حق دي . خوداسي کار کول چې دمحلې ، کلی اومسجد خلګو ته یې ضرر وي یا دلمانځه په وخت کښې اخلال پیښوي منع دي . که کوم بانفوذه شخص دموسیقۍ غږول دمسجدپه قرب کښې منع کړي . خو غوره خبره ده کنه له فساد څخه ځان ساتل پکار دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۸۲ ).

مسئله : که غیر مسلم خلګ له داسې کار څخه نه منع کیدل نو مسلمانان دي یوازی په زړه کښې هغه بدوګڼي . له چاسره دي مقابله نه کوي .

(امدادالاحکام ج ۱ ص ۴۵۲ ).

## ناولې جامې په مسجد کښې ایښودل

مسئله : ناپاکی جامی دي په مسجد کښې نه ږدي که بهر یې ایښودل مشکل وو یا ورکیدلی نو مجبورا دي داسې ایښودلې کیږي چې ځای ناولی نه کړي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۱۸ کتاب الفقه ۱، ۴۵۷ )

## دمسجد فرش ته نژدې دجامومینځل

هغه ځای چې مسجد نه دي یعنی لمونځ ورباندي نه کیږی هلته داسی جامی مینځل چې نورو ته ضرر نه وي یا فرش استعمال نشی بیا صحیح دي په دې کښې امام او نور برابر دي خوځوك چې په مسجد کښی هستوګنه لري . بل ځای ته تګ یې مشکل وي ، دهغه لپاره وسعت دي څکه دهغه په تللو دمسجد په نګرانی کښی خلل پیښیږي او دنورو په ځیر یې بل ځای پریمنځلای نشي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۶۸ ).

مسئله : دمسجد دننه په غولی یا دیوال دجامو وچول ناروا دي مؤذن یا خادم ته که بل ځای دوچولو نه وو له مسجد څخه بهر په متصل ځای کښې یې وچولای شي
(احسن الفتاوی ۲، ۴۴۵ ).

## له مسجد څخه بهر پیرل او پلورل کول

**مسئله** : په مسجد کښې خرید اوفروخت کول دمسجد داحترام خلاف کار دي خو هلته چې هغه ځای دمسجد حکم نلري لکه دبوټ ایستلو ځای ، دغسل کولو ځای ، حجره یاداسې بل ځای چې دمسجد دمصلحت لپاره ودان شوي وي هلته په دې شرط روا دي چې نورو خلګو ته زیان نه رسیږي.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۴۲۱ ).

## په مسجد کښې تجارت کول

**مسئله** : کوم ځای چې دمسجد لپاره ځانګړی شوي وي هلته هیڅکله تجارت روانه دي کوم ځای چې شرعی مسجد نه دي یا بل دوقف ځای چې دمسجد لپاره وقف شوي وي هلته دوکان ودانول چې دمسجد په احترام یا ځای کښې فرق نه راځی هغه دمسجد دګټې لپاره په کرایه ورکول پروا نلری دمسجد دننه برخه یا بهرنی غولی ټول یو حکم لری هلته تجارت کول یا په کرایه ورکول شرعا ښه نه دي.
(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۳۰۳ ).

## دغیر مسلم لباس اغوستل اومسجد ته تلل

مسجد دخدای ﷻ دربار دي اولمونځ عبادت دي په دربار کښې دعبادت لپاره داسې لباس اغوستل اوحاضریدل ښه دي چې دالله ﷻ خوښ دي اوهغه مسنون لباس دي درسول الله غوره کړی لباس دي داسې لباس دي



دلمانځه لپاره نه اغوندی چې الله ﷻ ته خوښ نه وي یعنی هغه لباس چې رسول الله ﷺ منع کړی دي اوهغه دکفارو اوفساقو لباس دي.
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۷۲ ).

## په مسجد کښې ونې ایښودل

**مسئله** : په مسجد کښې دونی ایښودل که لمونځ کوونکو ته ګټور وو صحیح دي اوکه له کفارو سره شباهت وو یا ضرر وو ایښودل یې صحیح نه دي
(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۷۰ ردالمحتار ۱،۲۱۵ ).

**مسئله** : که میوه لرونکی ونه په مسجد کښې دلمونځ کوونکو دراحت لپاره ایښودله شوي وي میوه دي بهر نه وړله کیږی هلته دي مصرف کیږي.
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۰۴ ).

**مسئله** : که په مسجد کښې ګوښه ځای وي هلته میوه لرونکی ونه ایښودل یا دښه بوی لپاره ګلان کرل صحیح دي خو کوم ځای چې دلمانځه لپاره ځانګړی شوي وي هغه ځای دي په ونو نه نیسي.
(فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۴۹۰ ).

## دمسجد دضرورت دپوره کولو لپاره دهغه دغولي ونې وهل

**مسئله** : دمسجد غولی دلمونځ کولو لپاره دي هلته دي ونی ایښودل ښه نه دي خو که دمسجد په ګټه وي ، هغه بله خبره ده ، لکه داچې که په مسجد کښې لمروالی وو اوهغه ونو وچولای شوای که دمسجد په ګټه داوو چې انګړی له ونو خلاص شی ، شرعا اجازه ده ، څوک دي ورسره مخالفت نه کوي.
(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۹۲ رحیمیه ۴، ۷۲ ).

**مسئله** : دمسجد دونو بیع په مسجد کښی جائزه نه ده ځکه مسجد دلمانځه اوجماعت لپاره ځانګړی دي نو هلته خرید اوفروخت صحیح نه دي بهر دي کوی که څه هم هغه دمسجد ونی وي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۹۵ ) .

## دمسجد ښکلی کول

**پوښتنه** : دبرات یاقدر په شپه مسجد په ګروپونو یا ګلانو ښکلی کول څرنګه دي کـه یـي نیـت هـم بـدعت نـه بلکـه دهغـې شـپې داحتـرام اوخوشحالی په خاطر وي ؟

**ځواب** : دقدر اوبـرآت پـه شپه پـه شریعت کښی دعبـادت ، نفلونو ، تلاوت ، ذکر ، تسبیح دعا اواستغفار ترغیب ورکړل شوي دي ، په ګلانو یا نور څه زینت ورکولو ترغیب ورکړل شوي نه دي په تیره لـه داسی مراسمو ځان ساتل ضروري دي چې دغیر مسلمو لـه رواجونو سره ورتـه وي ځکه رسول الله ﷺ فرمایي (( من تشبه بقوم فهو منهم )) ((ابوداؤد )) .
خو دمسجد دخوشبویه کولو ترغیب ورکړل شوي دي . چې لمونځ کوونکو ته اذیت نه وي . په همداسی ځانګړو اومتبرکه شپو کښی په مسجد کښی راټولیدل مکروه اومنع دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۴۱۳ ) .

## دمحرم دمیاشتی په لسمه نیته په مسجد کښي شریني ویشل

**مسئله** : داسوم شرعی اصل نلری نه په قرآن اوحدیث کښی ثابت دي هغه شرعی بلل غلط دي خو له ځینو روایتونو څخه داسي ښکاری چې دمحرم په لسمه نیته روژه نیول خورا ثواب لری اوپه هغه ورځ په خوړو کښی زیاتوالی کول دبرکت سبب دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۴۱۳ ) .



**پوښتنه** : درجب په میاشت کښی چې ځینی خلګ په کومو لوښو کښی شیریني یا شیدي ویشي . هغه متبرک بولې په کورونو کښی یې نه استعمالوي . بلکی مسجد ته یې ورکوي آیا هغهٔ څوک خرڅولاي اوبیه یې په مصرف لګولای شی ؟

**ځواب** :ددي لوښو خو په شریعت کښی کوم اصل نشته که یې دثواب په نیت ورکړی نو دورکوونکی په نیت یې په مسجد کښی استعمال صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۰ ص ۱۵۸ ) .

## دنژدې مسجدونو داذان حکم

**مسئله** : که دوه مسجدونه سره نژدې وي په دواړو کښی بیل بیل اذان مسنون دي په یوه باندي اکتفا کول دسنت خلاف عمل دي که څوک داسی کوی هغوی دسنتو تاړکین دي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۱ او ج ۱۵ ص ۱۹۵ ) .

**مسئله** : که په ډیرو مسجدونو کښی اذان کیده دلومړی اذان ځواب ورکول ضروري دي دنورو ځواب ورکول غوره دي که دخپلی کلی وي اوکه دبل کلي .

( فتاوی رحیمیه ج ۴ ص ۲۸۹ دمراقی الفلاح ۱۱۷ ص په حواله ) .

## تراذان وروسته له مسجدڅخه وتل

**پوښتنه** : تـراذان وروسـته پرتـه لـه ضرورتـه بـل مـسجد تـه تلـل اوهلتـه لمونځ کول جائز دي ؟

**ځواب** :که دي شخص تـه پـه بـل مـسجد کښی دجماعت معطلی وي که دي ورنشی هغه جماعت نه کوی نوبیا یې تلل اوهلته لمونځ کول مکروه

نه دي لاړ دي شي هلته دي لمونځ وکړي که ورته معطله نه وي نو پرته له ضرورته په داسې حال کښې تلل مکروه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۲۸ احسن الفتاوی ج ۶ ص ۴۵۰ ).

## دنژدې مسجد حکم

مسئله : که سره نژدې څو مسجدونه وو نو چې کوم نژدې دي تلل ورته افضل دي ضرور دي هلته لمونځ کوي که ټول په يوه محله کښې وو نو کوم چې پخوانی دي هلته تلل غوره دي که په قدامت کښې هم سره برابر وو يا يې وخت معلوم نه وو نو چې ډير نژدې وي هلته تګ بهتر دي .

(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۵۹ ).

مسئله : اصل دادي چې که په کلي اومحله کښې کوم مسجد چاته نژدې وي ، دهغه حق زيات دي هغه پريښودل اوبي عذره لرې مسجد ته تلل جائز نه دي .

(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۵۳ فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۵۱ درمختار ج۱ ص ...)

مسئله : پنځه وخته لمونځونه دکلي په مسجد کښې کول افضل دي هغه پريښودل قصدا (جامع) مسجد ته دزيات ثواب په هيله تلل غوره نه دي خو هغه لورته که بل کار ولري دلمانځه وخت ورباندې راشي اوهلته په جامع مسجد کښې لمونځ وکړي ثواب يې تردي زيات دي دجمعې لمونځ په جامع مسجد کښې افضل دي اوداخترونو لمونځونه په دښته (ځنګل) کښې غوره دي .

(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۴۴ ).

## له شاهي مسجد څخه تفريح ځای جوړول

پوښتنه : شاهي مسجد دتعمير دفن په لحاظ خورا ښه جوړشوي وي هغه دتفريح په ځای بدلول چې مسلم اوغيرمسلم وقت بي وقته هلته ورځی شرعا جائز دي ؟



ځواب : داسې کار دمسجد داحترام خورا خلاف کار دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۰ ص ۱۹۲ دمشکوة ۱،۶۸ په حواله )

مسئله : له مسجد څخه دتفريح ځای يا دسير اوسياحت موضوع جوړول جائز نه دي اوپه مسجد کښې عکس اخستل تردي هم ناوړه کار دي دادحرامو کارونو ټولګه ده دمسجد دادب خلاف کار دي په مسئولينو لازم دي ترڅو يي مخنيوی وکړي .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۷ ).

مسئله : په مسجد کښې عکسونه ځوړند کول ، اخبارونه لوستل ، ټيليوژيونونو لپاره فلمونه جوړول ناري وهل ټول حرام دي .

(آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۵۸ ).

مسئله : مسجد ته دهندو عيسايي او نورو غير مسلمانانو خلګو ننوتل منع دي . (کفايت المفتی ۳،۱۲۴ ).

## تبليغي جماعت اودمسجد لوازم

مسئله : داخلګ ددينې امورو لپاره وتلی وي ، په مسجد کښې هستوګنه کوي ، دهغوی دکار ډيره ګټه رسيږي اوله دي څخه څوك انکار کولای نشي هغوی ته په مسجد کښې دهستوګنې ناستې ولاړې اجازه ورکوی ورسره مرسته کوی دهغوی هدف لمونځ دي بل مقصد نلری له همدې امله که دمسجد لوازم بوکه ، پري ، نل ، بدنی هرڅه استعمالوی ممانعت يي مه کوی . (فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۲۸ ).

## په مسجد کښې دي تبليغي زده کړه چيري کيږي ؟

مسئله : که په لمانځه اووظيفه کښې خلل پيدا کيده داسې تبليغ او زده کړه منع دي خودتعليم سلسله هم خورا مهمه ده نو ددواړو جاری ساتل په کار دي که مسجد لوی وو يوی ګوښې ته ياپه برنډه يا بهرنی غولی

کښې دي تبليغی زده کړه کيږي يعنی داسي ځای چي دلمونځ کوونکو
لپاره مزاحمت نه وي

په تعليم کښې دي دفضايلو ترڅنګ داودس ، لمونځ ، روژې او نورو
احکام هم بيانيږي يوازې په فضايلو دي اکتفا نه کيږي

(فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۱۰۱ کفايت المفتی ۳.۱۲۷).

## دمسجد دحوض اندازه

**پوښتنه** : کوم حوضونه چي دمسجدونولپاره جوړيږي دهغه اوږدوالی،
سورا اوګډوالی به دمروجه متر په حساب څومره ، څومره وي ؟

**ځواب** :لس ګزه اوږد اولس ګزه يي سور کافی دي دلته مقصد شرعی ګز
دي چي په عربی کښې ورته ذراع وايي ، رسمي ګز دوه ذراع کيږي يعنی
په رسمی ګز اوږدوالی او سور پنځه ، پنځه ګزه .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۹۲).

## دزاړه مسجد په ځای دحوض جوړول

**مسئله** : که کوم ځای يوځل مسجد وو بيا ديوه ضرورت په اساس رنګ
کړای شو اومسجد نوی ودانيده ، کوم ځای چي پخوا مسجد وو ترهغه
ځای لاندی ، باندي ، کومه خونه ياحوض جوړول جائز نه دي که مسجد
بالکل نوي جوړيده يا کوم ځای له مسجد څخه بهر وو او اوس يي په
شرعی مسجد کښې داخلاوو نودمسجد په ګټه پکښې حوض يا خونه
جوړول ګنجائش لري

(فتاوی رحيميه ج ۱۰ ص ۲۴۱ ددرمختار ج ۳ ص ۵۱۳ په حواله ).



## په حوض کښې دڅه شي مينځل

هغه حوض چی لس په لس شرعی ګز کښې دي هغه نه ناولی کيږي
خو ادب اوسليقه داده چي خپلې ، يانور شيان دي له حوض څخه بهر په
څنډه کښې ومينځل شی مسواک دي هم په حوض کښې نه ډوبوی ،
بلکې په لاس دي اوبه ورته رااخلي .

(فتاوی محموديه ج ۱۰ ص ۱۵۰).

**مسئله** : دمسجد له نل څخه کليوال اوبه وړلای شی خو که خراب شی
دهغه مرمت دي دوی کوی داسی نه چی اوبه کليوال وړی اودنل مرمت
دمسجد په پيسو کوي .

(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۷۸).

## دمسجدپه ځای کي دموټرونوځای ودانول

**پوښتنه** : که په مسجد کښې حوض وو اوس يوه ټانکی جوړه شی
اودحوض په ځمکه يوه خونه جوړه کړي ، هغه په کرايه ورکړی اوپيسی
يي په مسجد لګولی آيا متولی داحق لري ؟

**ځواب** که دلمونځ کوونکو داوداسه ځای نه تنګيږي ، دمسجد دهوا
اورڼا مانع نه ګرځی ،بيا دمسجد دګټی په خاطر دپوهو خلګو په مشوره
داسی څه کول روا دي .

## دجماعت ترځای لاندي دحوض جوړول

**پوښتنه** : که دنوی مسجد دجوړولو پروګرام اودقانون مطابق دمسجد په
ځمکه دموټرونو تم ځای جوړول لازمی وو اوداځای دمسجد ددیوال په
خوا کښې جوړيده که هغه جوړنشی دمسجد دجوړولو اجازه نه ورکوی
سوال دلته دي چي کومی پيسی په بانك کښې دمسجد لپاره ايښی دي
دهغوئ په سود دموټرونو تم ځای جوړيدلای شی ؟

ځواب :دلته چې دلمونځ کوونکو دموټرانو لپاره ځای پرېښودل حتمي دي نو شتمن اشخاص دي داځای په خپل حلال مال ودان کړي.

(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۱۲۵ ).

## په مسجد باندي دحکومت قبضه

پوښتنه : ایاحکومت ته داحق شته چې کوم مسجد په زور ونیسي بیا یا نغدي روپي واخلي یا شرائط کښېږدي او دحکومت تسلط وربانديې وي ؟

ځواب :مسجد دخدای تعالی کور دي خدای تعالی یې څښتن دي دکوم انسان په ملکیت کښې نه دي الله تعالی فرمایي « وان المساجد لله » ( په تحقیق مساجد خدای لره دي ).

نوچې دخدای تعالی ملکیت دي اودهغه دعبادت لپاره ځانګړی دي نو دحکومت وربانديې دقبضې اوتسلط نشته که په زور وربانديې قبضه کوي شرعا ناروا ده پرېښودل یې لازم دي دپرېښودلو په صورت کښې په بدل کښې پیسې اخستل یا شرائط ایښودل هم دحکومت حق نه دي.

(کفایت المفتي ج ۷ ص ۷۱ ).

## مسجد ورانول او لاره جوړول

پوښتنه : که په کوم ښار کښې حکومت دلارې دجوړولو لپاره کورونه ، دنورو مذهبونو عبادت ځایونه اودمسلمانانو مسجدونه ټول نړوي اوبل ځای ورته ځمکه ورکوي دهغه بدل بل ځای اخستل روا دي ؟

ځواب :کوم ځای چې یوځل مسجد شوي وي هغه ترقیامة مسجد دي که هغه ودان شوي وي اوکه نه وي که لمونځ پکښې شوي وي اوکه نه وي حکم یې یو دي هغه ځای پرته له عبادت څخه دبل شي لپاره استعمالیدلای نشي دهغه ځای دخرڅولو ، کرایه ورکولو ، په ګروي ورکولو یا بیرته دوقف کوونکي ورثې ته ورکول جواز نلري.



په همدي پوښتل شوي صورت کښې دمسجد ځمکه په لاره کښې رانیوله کیدلای نشي

(فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۹۱ ج ۲ ص ۱۷۷ بحر الرائق ۲-۷۴ ).

« دمسجد دخوندي کولو هڅه دي وشي خو که حکومت داکار کا وو ورسره مقابله دي نه کوي ځکه هغه اسانه نه ده که بل ځای ورته ورکوي تري وادي خلي او کوشش دي وشي دپخواني مسجد پاته شیان په نوي مسجد کښې استعمال شي ترڅو یې بې عزتي ونشي ( والله اعلم )

( « محمد رفعت قاسمي » ).

## لاره په مسجد کښې رانیول

مسئله : که لاره پراخه وي اونه تنګیدله په مشوره سره دي دضرورت په اندازه هغه پکښې ونیوله شي شرعا روا ده دخلګو خوښه به وي اولاره به نه تنګوي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۷ ).

مسئله : که هغه لاره دچا ملکیت نه وه دعامو خلګو وه مسجد تنګ وو دپراخولو ضرورت وو په پراخولو یې دخلګو لاره نه تنګیدله نه ورته ستونزه پیښیدله نو مسجد دضرورت په اندازه پکښې پراخیدلا شي که هغه دچا مملوك ځمکه وي اوپرته له بیعی یې نه ورکوله په بیه دي واخستله شي اوپه مسجد کښې دي ورګډه شي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۷۵ ).

## دلمانځه لپاره مسجد ته دمیرمنو تلل

مسئله : درسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې مسجد ته دمیرمنو دتلو اجازه وه خو ورسره داارشاد هم وو « بیوتهن خیر لهن » یعني هغوئ ته تر مسجدونو کورونه غوره دي «مشکوة ص ۹۶ ».

«ام حمید رضی الله عنها یوي صحابی عرض وکړ چي یا رسول الله صلی الله علیه وسلم په تاپسی لمونځ کولو ته زموږ ډیر شوق دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل «ته ربښتیا وایي خو تاسو ته ترډګر دننه لمونځ غوره دي او تر لوړ ځای درته دغولی لمونځ بهتر دي».

ترهغه وروسته ام حمیدرضی الله عنها دننه ځای دلمانځه لپاره ځانګړی کړ او تروفات پوري مسجد ته نه لاړه . ((ترغیب ج۱ص۱۸۰)).

دحضرت عمر ؓ په دوره کښی دمیرمنو په وضع کښی تغیر راغلی وو ( لباس یي ښکلی شوي وو خوشبویي یي استعمالوله او ....) عمر رضی الله عنه چي هغه حالت ولید میرمنی یي له مسجد ته تللو څخه منع کړی نور صحابه وو هم داکار خوښ کړ چا مخالفت ونکړ خو ځینو بیبیانو عایشی ( رضی الله عنها ) ته شکایت وکړ خوهغې هم دعمر ؓ رایه غوره وبلله اووبي ویل «که رسول الله صلی الله علیه هم میرمنی داسی لیدای لکه اوس چي دي نو هغوی به یي له مسجد تللو څخه منع کړی وای»
(صحیح بخاري ج۱ص۱۲۰ مسلم ج۱ص۱۸۳ ).

دادهغه وخت خبره ده چي میرمنو تقوی ، شرم اوحیا زیات درلودل اوخلګ هم اکثر نیک وو هغه یوه زرینه دوره وه دنبوی مسجد په فضیلت اودجماعت په لمانځه هم په شریعت کښی خورا زیات تاکید دي بیا هم هغه وخت میرمنی له مسجد تللو څخه منع شوي وي نو اوس به څرنګه حکم وي ؟

په درمختار شامی ج ۱ ص ۵۲۹ کښی وایي : دمیرمنو تګ اوپه جماعت کښی شریکیدل که دجمعی اواخترونو لمونځونه وي ، که دوعظ مجلس وي که میرمنی زړی وي که ځوانی ، که شپه وي که ورځ دزمانی داهل دفساد له امله مکروه دي او دااتفاقی فتوی ده .



( فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۲۳۲ عالمګیری ج ۱ ص ۵۲ کفایت المفتی ج ۵ ص ۳۹۲ اواحسن الفتاوی ج ۶ ص ۴۲۵ )

## په مسجد کښي غږ لرونکي ساعتونه

مسئله : دداسی ساعتونو مقصد خو وخت معلومول وي ، دموسیقی دالاتو او ازونه یي مقصد نه وي ، خو داچي ساز او اواز عام شوي دي په ساعتونو کښی دالحاظ ساتل شوي دي که دموسیقي الاتو غږ پکښی وو بالکل ناروا خونه ده خو ورسره مشابهت دي نو دداسی ساعتونو په ځای که هغه ساعتونه کښیښودل شی چي اواز نلری غوره دي . (فتاوی محمودیه ج۱۰ص۱۴۹ ).

مسئله : ځینی ساعتونه په هرو پنځلسو دقیقو کښی دټنګ ټنګ غږ کوی دادهغه چا لپاره سهولت دي چي یا لیري وي یا یي سترګی کمزوری وي په همدي اساس همدا سی ساعتونه ایښودل جائز دي . (فتاوی رحیمیه ج۶ص۱۳۱امداد الفتاوی ۲-۷۴۳ )

## دلمانځه دمهال ویش نقشه بل مسجد ته وړل

مسئله : که اصل مالك دادوخت نقشه وقف کړی وه اووقف یي صحیح وو بیا بل مسجد ته دنقشی نقل کول جائز نه دي خو که مسجد ودان نه وي بیا بل مسجد ته دنقشی ورکول صحیح دي که دانقشه وقف نه وه بیاخو یي بل مسجد ته وړل څه مشکل نه دي . (فتاوی محمودیه ج۱۰ص۱۵۹ ).

## دمسجد ځمکه پرته له کرایې چاته ورکول

مسئله : دمسجد لپاره وقف شوي ځمکه دمسجد لپاره ده کومی اداري ته یي پرته له کرایي ورکول جائز نه دي کرایه دي پري واخستل شی اوهغه دي دمسجد په ګټه استعمال شي . (فتاوی رحیمیه ج۴ص۷۲ ).

## دمسجد کومه خونه په کرایه ورکول

**مسئله** : دمسجد په احاطه کښې که حجرې وي هغه دمسجد دامام یا نورو خدمت کوونکو لپاره وي همدا کار دي ترې اخستل کیږي اوپه کرایه دي نه ورکوي که زیاتې خوني وي زده کړه دي پکښې وشي که جوړوونکي یاوقف کوونکي هغه دکرایي لپاره جوړې کړي وي ترڅو یې عاید مسجد ته ورکړي په کرایه ورکول کیدلاي شي خوپه دي شرط چې مسجدته زیان نه وي دمسجد بې حرمتی نه وي لمونځ کوونکو ته تشویش نه وي اولاره یې له مسجد څخه بیله وي .

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۹۹ ).

**مسئله** : دمسجد دعایداتو دزیاتولو لپاره دمسجد دقبلی لوري دیوال ړنګول او دوکانونه جوړول جائز نه دي دمسجد دقبلی لوري دیوال دمسجد حکم لري .

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۷۲ دبحرالرائق ۵-۲۵۱ په حواله ).

## دمسجد په څمکه لوبې کول

**مسئله** : مسجد یاقبرستان ته وقف شوي څمکه داحترام په لحاظ دمسجد په حیثیت کښې نه ده ترڅو چې قبر شوي نه وي یا مسجد وربانډي ودان شوي نه وي هر روا کار پکښې روا دي اوهرناروا کار پکښې ناروا دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۰۲ ).

**مسئله** : ترمسجد بهر دمسجد څمکه پرته له کرایي دکوم کار لپاره ورکول جائز نه دي په کرایه دي ورکړل شي خوچې مسجد ورته اړتیا نه وي اودمسجد بې حرمتی پکښې ونشی کنه په کرایه ورکول یې هم جائز نه دي .

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۹۸ ).



## دمسجد زینې یا نور څه استعمالول

**پوښتنه** : دمسجد دمتولي په اجازه دمسجد زینې یا بل شی کورته وړل کیدلای او هلته استعمالیدلای شي ؟

**ځواب** :کوم شی چې دمسجد په پیسو اخستل شوی وي اونور خلګ یې دضرورت لپاره له مسجد څخه غواړي ، هغه دي نه ورکول کیږي ، هوکه دمسجد دښیګنې تقاضا وه ورکول کیږي دي

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۰۷ ).

## دمسجد لوازم غوښتل

**پوښتنه** : دمسجد اړوند توکې لکه سمټ ، تیل یانور کمه اندازه غوښتل جائز دي ؟

**ځواب** :دمسجد اړوندتوکی بې اجورې اوبې بیعې وړل دهیچا حق نه دي نه په اجازه سره اونه پرته له اجازې کوم شی چې په اجوره ورکول کیږی هغه دي په اجوره وړل کیږی اوکوم شی چې په بیعه ورکول کیږی هغه دي په بیعه وړل کیږي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۶ ).

## دمسجد سامان په کرایه ورکول

**پوښتنه** : که دمسجد دخادمانو دمصارفو دپوره کولو یا نورو احتیاجاتو لپاره دمسجد په پیسو څه لوښی یا بل څه واخستل شی هغه په کرایه ورکوي اوپیسی یې په همدي اړتیا وو کښې لګوي شرعی جواز لري ؟

**ځواب** :په شرعی لحاظ په دي کار کښې کومه بدي نشته اوکرایه اخستل یې په ضروریاتو کښې لګول صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۸ ).

## په مسجد کښې بیده کیدل

**مسئله** : که امام وي یا بل څوك چې دخوب دپاره بل ځای ولري په مسجد کښې هره ورځ بیده کیدل ورته مکروه دي .

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۵۲ ، عالمگیری ج ۵ ص ۳۲۰ ، فیض الباری ج ۲ ص ۴۹ ).

**مسئله** : په مسجد کښې بیده کیدل مکروه دي چاته دمتولي له لوري دبیده کیدلو داجازې حق هم نشته یوازې دمعتکف اومسافر لپاره گنجائش اوجواز شته .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۴ ، کفایت المفتی ۱۱۳-۳ ).

**مسئله** : مسجد دلمانځه ځای دي دخوب او ارام ځای نه دي مسافر یامعتکف پکښې بیده کیدلاي شي تبلیغي گروپونه عموما مسافر وي یا شپه په تسبیح او نفلونو تیروي اوضمنا پکښې بیده کیږي نوڅه مشکل نلري که کوم کلیوال ورسره په مسجدکښې شپه تیروي داعتکاف نیت دي کوي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۲۲ درمختار مع شامی ج ۱ ص ۴۱۹ ).

**مسئله** : لمونځ کوونکي که دلمانځه له وخت څخه پرته کله ناکله په مسجد کښې پریوزي یا بیده کیږي . باك نه لري خو له مسجد څخه خوب ځای جوړول صحیح نه دي .

(کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۱۴ امداد الاحکام ج ۱ ص ۴۳۲ ).

**مسئله** : دتبلیغي جماعت کسان که مسافر وو اودمسجد دپاکوالي اواحترام خیال یې ساتلای شوای نو په مسجد کښې ورته خوب کول صحیح دي که له مسجد څخه بهر ځای وو هلته یې بیده کیدل ، خوړل څښل غوره دي

(فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۱ عالمگیری ۳۱۵-۲ ).



**مسئله** : له مسجد څخه کور جوړول ، هلته هستوگنه کول ښه نه دي مکروه دي اودمسجد دادب خلاف کار دي خوکه په چا خوب غلبه وکړه ، جماعت تیریده یا لمونځ قضا کیده یا په مسجدکښې بیده کیدل ورته په جماعت پابندي وه یا تهجد ته دبیداری په نیت وو یا دمسجد ساتل یې په غاړه وو یابل داسې دیني ضرورت وو چې پرته له مسجدڅخه نه پوره کیده بیا پکښې بیده کیدل اجازه ده ځینې صحابه کرام هم ددیني ضرورتونو په خاطر په مسجد کښې بیده کیدل

(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۴۸۰ دشامی ج۱ ص ۴۴۴ په حواله )

**مسئله** : په مسجد کښې بیده کیدل دمعتکف اومسافر لپاره روا دي نورو ته مکروه خوکه څوك په مسجد کښې بیده کیدل ترخان لاندي دي کومه جامه غوړوي ترڅو یې خوله فرش خراب نکړي یا په خوب کښې دفرش دناولتیا ویره نه وي (آپ کی مسائل ج ۳ ص ۱۴۱ ).

**مسئله** : په مسجد کښې خوب کول روا دي خو دفضیلت خلاف دي که څوك بیده شي دخوب حالت کښې که بادتري ووزي گناه نه ده .

( امداد الاحکام ج۱ ص ۴۲۳ احسن الفتاوی ۴۴۷-۲ ).

## په مسجد کښې ناولې خوله

له بدن اوجامو سره خوله هم بایدپاکه وي داسې نه وي چې دغړیدلو په وخت کښې یې له خولې څخه بوی ولاړیږی اولمونځ کوونکو ته زیان رسیږی مسجدته ترتللو وړاندې خوله ومینځل شي داسې څه دي نه خوري چې بدبوی ولري .

په حدیث شریف کښې په مسواك تاکید اودهغه دفضیلت دبیان لویه وجه داده چې دالله ﷻ په دربار کښې حاضرې له پاکۍ سره وي ترڅو ددعا اوزاریو ادب بشپړوساتل شي رسول الله ﷺ دخولې دپاك ساتلو

خورا اهتمام کاوو رسول الله ﷺ کوم اودس له مسواك څخه پرته نه کاوو اوامت ته یي هم دمسواك وهلو ډیرترغیب کړی دي یوځل یي وفرمایل « که زما په امت شاق نه وای له هرلمانځه سره به مي دمسواك امر کړي وو » په یوه بل حدیث کښې راځي « مسواك دخولې پاکوالی اوداللہ ﷻ دخوشحالی سبب دي » رسول الله ﷺ به داسې څه خوړل چې بوی یي ژرنه ختمیږي دمسجد تللو په وخت کښې منع کول لکه پیاز ، ملی ، اوږه اوداسې نور ....

( په اسلام کښې دمسجدونو نظام ۲۱۹ ).

## مسجد ته دهغه چاتلل چې زخم یي بوی کوي

**مسئله** : هغه څوك چې زخم یي بوی درلود اوخلګو ته تری ضرر رسیده مسجد ته یي تلل منع دي .

( فتاوی محمودیه ج۶ ص ۱۷۳ دشامی ج۱ ص۲۹۱ ).

« اصل خبره داده چې مسجد ته دي سړی په داسې حال کښې نه ځی چې خوله یا دبدن بل ځای یي بوی کوی ، که هغه دخوراك څښاك وي اوکه دبدن یا جامو دناولتیا .

(( رفعت)) .

## که دچا پوزه بدبویه وه

**پوښتنه** : که دچا مور زاده په پوزه کښې ناروغی وه علاج اودرملنی ګټه نه رسوله اوبدبوی تري ولاړیده داسې څوك مسجد ته تللای شی ؟

**ځواب** :په حدیث شریف کښې دي « څوك که له بدبویه ونی ( میوی ) څخه خوړل وکړی زموږ مسجد ته دي نه راځی له هغو څخه ملایکو ته داسې ضرر رسیږی لکه انسانانو ته چې رسیږی «بخاری شریف اونور» .



په حدیث کښې دملایکې اوانسان دضرر خبره ده نوکه دجسم دکومې برخې له بوی څخه خلګ ناخوښه او ورته ضرر رسیده هغه دي مسجدته نه ځی په اعتکاف کښې دي نه کښینې فقها وایي هغه شخص چې له بدن څخه یي مضر بوی راځی هغه دي له مسجد څخه وایستل شي .

(( داسلام دمسجدونو نظام ۲۱۹ ).

مسجد دملایکو ځای دي ، ددي لپاره چې ضرر نه رسوي له بوی سره دي مسجد ته نه ځی خو که بوی کم وي دخوشبوی اوعطرو په واسطه دي دفع اوچاره کوي .

( فتاوی رحیمیه ج۱۰ ص ۴۴۵ ).

**مسئله** : ده هوږی ( سر) اوپیاز په هکله رسول الله ﷺ فرمایي « که یي خوري نو هغوی پاخه کړی ترڅو یي بوی مړ شي .

((ابوداؤد ج۲ ص۱۸۰ ).

« دپیاز اوسر په څیر چلم ، سګرت ، نسوار ، دخاورو تیل اوهربدبوی لرونکی شی همداسی حکم لری دچلم ، سګرت اونسوار استعمالوونکی دي ترمسجد ته تللو وړاندی خوله سمه مینځی ، مسواك دي وهی ترڅو یي په حدیث شریف عمل کړی وي .

(( رفعت قاسمی )).

**مسئله** : مسجد په داسی رنګ ، رنګول چې بوی ولری مکروه دي مسجد دي له هربدبوی څخه وساتل شی و داچې رسول الله ﷺ منع کړی ده چې دپیاز یا هوږی ترخوړلو که خوله نه وی مینځل شوی مسجد ته دي نه ځی فقهاوو هم مکروه بللی دي .

( فتاوی محمودیه ۱۵-۲۰۲ ).

« داچې له بدبوی سره مسجد ته ننوتل منع دي نوهلته سګرت ، چلم څکول ، به څومره ګناه وي .

(( رفعت )) .

## دمنفور ناروغ مسجد ته تلل

**مسئله** : کوم مرض متعدی ګڼل شوی نه دي . رسول الله ﷺ ورڅخه منع کړی ده خوکه څوك په داسي ناروغی اخته وي . چي خلګ ورڅخه کرکه کوي یا یي عقیده بدلیږی یا یي غلطه عقیده ټینګیږي هغسې شخص دي کور اودس کوي . که یي مسجد ته تللو هم نفرت پیدا کاوو لمونځ دي کور کوي جماعت ورڅخه ساقط دي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۸ ).

**مسئله** : که په زخم کښی وینه نه وي اوبه نه وي ، بدبوی نه وي ، خوبیا هم خلګ ورڅخه کرکه کوی اودي پوهیږی چي خلګ له مسجد څخه منع کیږی ، همدا بیمار دي مسجد ته نه ځې .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۳۱۴ ).

## مسجد ته دغیرمسلم ننوتل

**مسئله** : که دهغه دناولتیا علم دچا نه وو بل کوم ضرر یي نه وو کوم فساد پکښی نه وو نو مسجد ته دغیر مسلم دننوتلو اجازه شته دمسجد په اهل باندي ګناه نشته

((فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۵۱ ، بحرالرایق ج ۵ ص ۲۵۱ ).

## مسجد ته دماشومانو راوړل

**مسئله** : مسجد ته دوړو ماشومانو وړل اجازه نشته ، په هغه صورت کښی دمسجد ادب اواحترام خوندي نه پاته کیږی راوړونکی ته هم دزړه داد نه پاته کیږی په لمانځه بۀ ولاړ وي خو خضوع اوخشوع به یي نه وي زړه به یي دماشومانو لورته ختلی وي درسول الله ﷺ ارشاد دي چی (( خپل مسجدونه له ماشومانو اولیونیانو وساتی ))

(ابن ماجه ج ۱ ص ۵۵ ).



**مسئله** : که داویره وه چي ماشوم به مسجد ناولی کړی نو وروړل یي حرام اوکنه نو مکروه دي (( الاشباه ۵۵۷ )) .

**مسئله** : که ماشوم پوهیده ، لمونځ یي کولای شوای دمسجد ادب اواحترام یي ساتلای شوای بیا څه حرج نشته ، غالبا په حدیث شریف کښی اوه کاله قید شته نابالغ هلك له لویانو سره په صف کښی دریدلای شی که یو وو مکروه هم نه دي

((فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۲۱ آپ کی مسائل ۱۴۳-۳ ).

**مسئله** : کله چي ماشوم دځلوینتو ورځو شی ځینی خلګ یي مسجد ته راوړی اوبیا شیرینی یانور څه ویشی دارسم دي بی اصله ، لغو او دپرینښودلو وړ دي .

((فتاوی محمودیه ج ۱ ص ۲۰۸ )).

## دمسجد دروازه بندول

**پوښتنه** : که دیوه مسجد دروازه دماخستن ترلمانځه وروسته بندیږی او که کوم لمونځ کوونکی راشی مؤذن یا خادم یي نه ورته خلاصوی ، داکار شرعا څرنګه دي ؟

**ځواب** :په درمختار کښی دي چی دمسجد دروازه بندول مکروه دي خوکه دمسجد دسامان دورکیدلو اندیښنه وه نودلمانځه له وخت څخه پرته یي بندول باك نلری په شامی کښی وایي (( داخبره تر کلیوالو پوری اړه لری چی دلمانځه له وخت څخه پرته یي څه وخت بنده ساتی خو په دي مورد کښی چی پوښتنه شوی ده دلمانځه لپاره دروازه نه خلاصول دشریعت خلاف خبره ده داچي دروازه وتړله شی بیا لمونځ کوونکی ته نه خلاصیږی ثابت نه ده .

(( فتاوای دارالعلوم ج ۴ ص ۱۴۹ ددرمختار ج ۱ ص ۲۱۴ په حواله )

**مسئله** : که دلمانځه په وخت کښې داویره وه چې ځاروي مسجد ته راځي د مسجد دروازه دي داسې تړله کیږي چې لمونځ کوونکي يې په خپله خلاصولای شي اوشکایت يې راجګ نه شي.

((فتاوی رحیمیه ج ٦ ص ۱۰۴))

((نني حالات خراب دي غلا ، قتل اوغارت ډیر دي که چیرې همداسې وي نو ترجماعت وروسته دي دروازه بندیږي لمونځ کوونکي دي هم وپوهول شي چې دجماعت دوخت خیال وساتي ترڅو هم لمونځ په جماعت وشي اوهم سر اومال خوندي وي. ((محمد رفعت قاسمي)).

**مسئله** : که دکوم مسجد سامان خوندي نه وو دهغه دروازه بندول شرعاجائز دي خو دلمانځه په وخت کښې به دهر چا تګ راتګ ته اجازه وي.

((فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۹۵ آپ کی مسائل ۱۴۰-۳).

**مسئله** : که کوم کلي په اوبو کښې ډوب شو اودبیا ډوبیدلو له ویرې ورته حکومت بل ځای ورکړ دهغه زاړه کلي مسجد چې وران شوی وي سامان به بل مسجد ته ورکوي خو په دې شرط چې دلته يې دبیا ودانولو هیله نه وي که نژدې مسجدونه دوه درې وو په مشوره دې یوه مسجد ته ورکړي اوکه مشوره نه راتله بیا دې سره وویشي البته که لوازم وي اوکه يې بیه.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۴).

**مسئله** : که کوم دمسجد اودبو دراتلو له امله دورانیدلو په حال کښې وو اوبیاد خوندي توب احتمال يې هم نه کیده دهغه لرګي (ګاډر) دې وکاري بل ځای دمسجد جوړولو جواز شته.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۲۸).



## دمسجد په پیسو بدنی اخستل

**مسئله** : کوم شی چې دمسجد لپاره وقف شوی وي په هغوی باندې دمسجد داړوند غسل ځای لپاره بدنی یا بل لوښي اخستلای شي همداسې که څوك بدني واخلي اودمسجد دغسل په ځای کښې يې داستعمال لپاره کښیږدي صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ۲۲۷-۱۵).

## دمسجد په عوایدو دجنازې کټ اخستل

**پوښتنه** : دمسجد په عوایدو دجنازې لپاره کټ اخستل کیدلای یا جوړیدلای شي ؟دمسجد لپاره وقف خو دمسجد دمصلحت لپاره دي اوکټ دعامو مسلمانانو لپاره.

**ځواب** :جواز نلري.

(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۱ دعالمګیری ج ۲ ص ۴۶۲ په حواله).

## دمسجد په غسل ځای اولاره کښې دوکان جوړول

**مسئله** : دځمکې هغه ټوټه چې یوځل مسجد شوه ، هغه تل مسجد ده هغه له مسجد څخه ایستل وربانذې دوکان جوړول جواز نلري.

دبوټونو دایستلو برخه چې دمسجد ځمکه نه وي دمسجد په پاخه غولي کښې داخلول که دوقف کوونکي یا دهغه دنماینده په اجازه نه وي شرعي مسجد نه دي.

دبوټونو دایستلو په ځای که مشوره راغله دمسجد دګټې لپاره دوکان ته بیلول چې دمسجد عایدو وربانذې ډیر شي صحیح دي.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۸۹).

## دغسل او اوداسه دځای دبام حکم

**مسئله** : دمسجد هغه غولی چې دلمانځه لپاره ځانګړی شوی دي پاس بام يې مسجد دي خو داوداسه دځای بام مسجد نه دي په هغه دمسجد حکم نه جاري کيږي ، که څوك له سفر څخه راشي اوجماعت شوی وي په غه ځای جماعت کولای شي خوداسې عادت دي نه جوړوي.
کله چې مسجد بشپړ ودان شو بيا دلاندې زيرخانه يا داودس ځای يا خونه جوړول جواز نلري.
((فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۲۴۵ ).

## دمسجد دبهرنې غولي ( انګړ ) احترام

**پوښتنه** : دمسجد دانګړ چې کوم ځای ترميم اوهموار شوی نه وي ، په منظمه توګه پکښې لمونځ نه کيږي آيا دهغه ځای احترام ضروري دي ؟
**ځواب** :کوم ځای چې مسجد بلل شوی وي ، که هغه هموار شوی اوجوړشوی نه وي هم دمسجد حکم لري ، هلته دي داسې کارنه کيږي چې دمسجد دادب اواحترام خلاف دي.

((فتاوی محموديه ج ۱۰ ص ۲۰۴ ).

## دمسجد اړوند بيت الخلاء جوړول

**مسئله** : درسول الله ﷺ په وخت کښې په مسجد کښې وياله ، بدنې ، حوض ، څاه ، دنل اوبه ، دغسل ځای ، کړکې ،پکه ، برق او نورهيڅ نه وو دمسجد بام به هم داسې وو چې تودوخه اوباران به تر تيريدل ، ډير ساده جوړښت وو هلته پزې اودرې هم نه وي داټول شيان ورو ورو له مسجد سره يوځای شول ، آن نن لا په ځينو سيمو کښې ميلمستون هم له مسجد سره تړاو لري هلته بسترې او نور لوازم ږدي دمسجد دامام او مؤذن لپاره خونې وي ، دماشومانو درس ځايونه وي ځينې ځايونه دبولو ځايونه اوبيت الخلا دسهولت لپاره جوړ وي په تيره په سترو ښارونو



کښې چې خلګ ورته ډير راځي که دضرورت درفع ځای نه وي نو خورا ستونزې وي که کوم مسجدونه يوازې دمحلې دخلګو لپاره وي هغوی کورونه لرې نو يوازې دښودنې لپاره دي نه جوړ وي که بيت الخلاء جوړيږي داسې ځای دی نه جوړيږي چې بدبوی يې مسجد ته راشي لمونځ کوونکو ته اذيت ورسوي.
(( فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۹۷ احسن الفتاوی ۴۷۴ ۲ ).

## که دغسل ځای لاره په مسجد کښې وي

**مسئله** : که دغسل لاره په مسجد کښې وه او دتيريدلو بله چاره نه وه ناولې سړی دي تميم کوی بيا دي تيريږي خو کوشش دي وشي چې دغسل دځای لاره دي په مسجد کښې نه جوړوي.
(فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۱۹۸ )

## دمسجد په پيسو بيت الخلاء جوړول

**مسئله** : لکه دغسل او اودس ځايونه چې دمسجد په پيسو جوړيدلای شي همداسې دامام اومؤذن لپاره بيت الخلاء هم دمسجد په پيسو جوړيدلای شي داودس اوغسل لپاره داوبو انتظام هم دمسجد په اوبو کيدلای شي.
((فتاوی محموديه ج ۱۵ ص ۲۴۷ ).

## دمسجد څنګ ته بيت الخلاء

**مسئله** : ترمسجدبهر بيت الخلاء جوړول روا ده چې ديوال ترمنځ وي لمونځ نه زيانمن کيږي خوداسې ځای چې بدبوی يې مسجد ته ځي يا لمونځ کوونکي ورڅخه په تکليف کيږي يا يې دريڅه دمسجد لورته خلاصول دمسجد دادب اواحترام خلاف ده غوره داده چې بيت الخلاء بيله جوړه شي او دريڅه همدمسجد لور ته خلاصه نشي
((فتاوی محموديه ج ۲ ص ۲۱۳

مسئله : داسې ځای بيت الخلآء جوړول شرعا جواز لري چې دمسجد بې احترامي ونشي اوبوي يې مسجد ته ونه رسيږي .

((فتاوی محمودیه ج ۶ ص ۱۹۶)).

مسئله : که دمسجد دپاکوالی لپاره دغسل ځایونه له مسجد څخه بهر نقل کيږي جائز دي او دمسجد پيسې ورباندې لګول جواز لري .

((فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۹۲)).

مسئله : دغسل په ځای کښې ضرورت رفع کول ناروا دي .

((فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۱۲۵)).

## داودس دځای دپاسه دبولو ځای جوړول

مسئله : دادلمونځ کوونکو اړتيا ده که څه لري وي صحيح دي څو يې بولې مسجد ته نه ورسيږي او اودس کوونکې ونه کړيږي اواړتيا هم پوره شي .

((فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۴۵)).

مسئله : دغسل دځای اوبه دې داسې ځای ته نه وزي چې لاره چکړې کوي اوخلګو ته ضرر رسوي ، دلارې خونې دې کول ضرور دي .

((فتاوی محمودیه ج ۱۷ ص ۲۶۵)).

## که مسجد ته څه شی ورکړل شي هغه دچا حق دي

مسئله : که مسجد ته دخوړلو څښلو څه شی ورکړل شي هغه دامام اومؤذن حق دي او که نور شيان لکه بدنۍ ، درۍ ، جای نماز اويا بل ورکړې شي هغه دمسجد حق دي .

((فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۷۷)).

مسئله : که دماشوم دسنت کولو يا په بل مورد کښې درواج په توګه مسجد ته څه شی ورکول هغه دې نه اخلي او که دخوشحالي په خاطر امام يا مؤذن ته څه ورکول کيږي اخستل يې حرج نه دي هغه چې دوی ته



ورکوي هغه ددوی حق دي خو چې مسجد ته څه شی ورکوي هغه دمسجد حق دي

((فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۴۰۱)).

## دمسجد پکه دامام په خونه کښې

پوښتنه : که چا مسجد ته يوه پکه ورکړه دامام دهستوګنې په ځای کښې يې لګول څرنګه دي ؟

ځواب :که يې په مسجد کښې دننه دلګولو په نوم ورکړې وه بهر وړل يې جواز نلري او که يې مطلق دمسجد په نوم ورکړې وه بيا روا ده .

((احسن الفتاوی ۴۲۳-۶)).

## ديوه مسجد لوازم بل مسجد ته ورکول

مسئله : که په يوه مسجد کښې لوازم لکه داوبو منګې زيات وو ، دساتلو ځای يې نه وو ضايع کيدل ، داسې مسجد ته يې ورکول ضرور دي چې ورته اړتيا وي خو په مشوره دي ورکړي چې فتنه را ولاړه نشي .

((فتاوی محمودیه ۱۸۶-۱۵ فتاوی رحیمیه ۱۲۳-۳)).

## دمسجد کوم شی په عاريت ورکول

مسئله : دمسجد سامان لکه بدنۍ ، ګيلاس ، پکې ، چترۍ ، يا نور څه دغم اوبنيادي مراسمو لپاره امانت ورکول ناجائز دي .

((فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۰۴ احسن الفتاوی ۴۵۰-۶)).

مسئله : که يې دمسجد چترۍ دساز اواواز مجلس ته امانت ورکړې وو ترهغه لاندې لمونځ کول روا دي ، په ګرمۍ کښې يې په مسجد کښې لګولای شوای خوبيا دي دساز اورقص مجلس ته نه ورکوي .

((فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۱۱۵)).

مسئله : ناروا عواید ، چې په کرایه کښې راځي هغه دي په مسجد کښې نه مصرفیږي دمسجد سامان لکه دیګ یا بل څه دي ناروا مراسمو ته په کرایه نه ورکول کیږي .
((فتاوی محمودیه ج ۸ ص ۱۷۵ ).

مسئله : دمسجد ملکیت دي داسې چاته په کرایه نه ورکول کیږي چې هغه ورته زیان رسوی لکه ژرنده ګری یا پښ چې ماشین پکښې ایښودل یابتې پکښې زیان رسوی چت او دیوال یې ورانوي .
((فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۹۹ دعالمګیری ج ۴ ص ۴۳۵ په حواله ).

مسئله : داجائز نه دي چې دمسجد دوکان څوك قبضه کړي اوکرایه مسجد ته ورکوی بلکې دمتولي په خوښه به یې خالي کوی او کرایه به هم مناسب وربانذی ورکوله کیږي ((فتاوی محمودیه ۱۵۴-۱۵ ).

مسئله : دمسجد ملکیت ځمکه سینما ته په کرایه ورکول ناروا ده .
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۳۱۸ ).

## دمسجد دوکان سود خور ته په کرایه ورکول

مسئله : که څوك دمسجد دوکان دسود دکاروبار له پاره په کرایه غواړي ورکول یې جواز نلري . (فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۲۱ ).

## له ویرې کوم مسجد پریښودل

مسئله : که چاته په یوه مسجد کښې دځان یاعزت ویره وه ، نورو مسجدونو ته تلای اولمونځ کولای شی دجمعي دلمانځه لپاره هم بل مسجد ته تلای شي
((فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۳۸ ).

مسئله : که دخپلې محلې امام صحیح العقیده شخص وو بل شرعي مانع هم نه وو نو خپل مسجد پریښودل بل ته تلل ناجائز دي .
((احسن الفتاوی ج ۲ ص ۴۴۹ ).



## دمسجد پنجره

مسئله : که دپنجرې اوسپنې دمسجد له ځمکې څخه یولاس (( نیم ګز )) لوړې وي اوپنډوالی یې یوه ګوته وي .که هلته څوك په لمانځه هم ولاړ وي سړی اومیرمنی که تیریږي جواز لري خوکه پنجرې یولاس لوړې نه وي بیا نژدې تیریدل ګناه ده .
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۱۳ دبحرالرائق ۱۵-۱ په حواله ).

مسئله : په صحراء یا لوی مسجد کښې ، له لمونځ کوونکی څخه په دومره واټن تیریدل جائز دي چې که لمونځ کوونکی دسجدې ځای ته ګوری مانع نشی ستر مسجد هغه دي چې لږ ترلږ څلویښت لاسه (( شل ګزه )) وي .
(امدادالاحکام ج ۱ ص ۴۵۲ ).

## په مسجد کښي برقې پکه لګول

مسئله : په مسجد کښې دتودوخې په وخت کښې ، دلمونځ کوونکو دراحت لپاره برقی پکه لګول شرعاممنوع نه ده ځکه لمانځه ته خلل وربانذی نه راځي اودبرق په روښانتیا هم لمونځ نه خرابیږي .

مسئله : که څوك پکه وقف کړي ، په مسجد کښې دي ولګوی اوبل مسجد ته یې وړل جواز نلري .
(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۱۹۷ فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۱۲ ).

## دمسجد په رڼا کښي خپله وظیفه کول

مسئله : دلمانځه لپاره چې څومره وخت په مسجد کښې رڼاوی ، هغه مهال دقران کریم تلاوت اووظیفه کول روا دي ، خو ترهغه وخت وروسته که تیل ورکوونکی اجازه وکړی روا اوکنه بیا جواز نلري ،که تیل دوقف په پیسو وو که وقف کوونکی دااجازه ورکړې نه وه چې له لمانځه پرته دې څراغ بلیږي بیاهم جواز نلري .

(فتاوی محمودیه ج ۶ ص ۱۲۰ دبحر ۲۵۹-۴ په حواله).

مسئله : منتظمین یا عام لمونځ کوونکی دي دضرورت په وخت کښې
دمسجد بخاري لګوی خو کوم خاص څوك دي دتلاوت لپاره
دکښیناستلو په وخت کښې هغه نه بلوې .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۰۲ ).

مسئله : دمسجد بریښنا یا نورخه دلمانځه په وخت استعمال کیدلای
شي خو ترهغه وخته وروسته یي مرسته ( چنده ) ورکوونکی منع کولای
شي .

(آپ کی مسائل ۱۴۱-۳ ).

## دیوه مسجد پایپ بل ته ورکول

مسئله : که پایپ دمسجد لپاره وقف وو دوقف کوونکی اختیار دي که
دهمدی مسجد ورته اړتیا نه وه اوپایپ خرابیده اوهغه یي خرڅا وه دبل
مسجد اهل هغه ترې اخستلای شي . (فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۲۴۱ ).

## دمسجد عواید که زیات شول

مسئله : دمسجد عواید دي په هغه مصرف شی که ددي مسجد ورته
اړتیا نه وه اوساتل یي هم ګران کار وو اودضایع کیدلو احتمال یي وو نو
نژدی مسجد ته دي دهغه دودانولو اوبو . رڼا ، دامام یا مؤذن دمعاش په
برخه کښې دمصرف لپاره ورکړل شي ، که هغه مسجد هم اړتیا نه درلوده
لری ته دي ورکړل شي ممانعت پکښې نشته ،که په کوم مسجد کښې
دي پیسو ته اړتیا وه نو په مدرسه ،مکتب کښې دی نه مصرف کیږی که
دمسجدونو ورته اړتیا نه وه بیا دي دمدرسی په اړتیا کښې مصرف
شي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۲ ص ۲۵۱ فتاوی رحیمیه ۱۸۷-۲ ).



مسئله : غوره داده چیزیات مبلغ ددي مسجد اړوند مدرسی په جوړولو
کښې ولګیږی دمسجد اهل به زیات شی او پیسی به له ضائع کیدلو
خوندی وي یا دي نژدي اړ مسجد ته په مشوره ورکړل شي

(فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۲۴۲ دشامی ج ۳ ص ۵۱۴ په حواله ).

## دمسجد له دالان څخه دفتر جوړول

مسئله : داچې دالان دمسجد دګټې لپاره وقف دی نودهغه کومه حصه
دبل کار لپاره استعمالول جوازنلری ،که دکوم اسلامی دین انجمن لپاره
ورکول کیږی کرایه دي تري واخستله شي جواز لري .

((فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۲۳۸ ) .

## دزده کړي لپاره په مسجد کښې دمیرمنو تلل راتلل

پوښتنه : که دمسجد دریو لورو ته دالانونه وو ، یوه لوری ته پکښې
دمیرمنو دزده کړی ځای وو آیا میرمنې په مسجد کښې ورتیریدلای شی ؟

ځواب : داچې دناولتیا (حیض) په وخت کښې یي له مسجد څخه تیریدل
صحیح نه دي نو ضروري خبره داده چی لاره یي له مسجد څخه بهر جوړه
شي ترڅو دمسجد بي احترامي ونشي . (فتاوی محمودیه ۱۵-۲۳۸ ).

## دمسجدعواید په زده کړه لګول

مسئله : که مدرسه دمسجد تابع وه یعنی دمسجد جوړوونکی ورسره
مدرسه هم جوړه کړه اوويي ویل چی دامدرسه دمسجد مربوطه ده
مصارف دي دمسجد له عوایدو کیږی جواز لري .

(فتاوی محمودیه ۱۴۸-۱۴ ).

## په مسجد کښې دلمانځه لپاره ځای نیول

مسئله : که څوك راغی په مسجد کښې کښېناست بیا ورته یو عاجل ضرورت پیښ شو. دتللو په وخت کښې یې په ځای څادر پریښود ځه حرج پکښې نشته اوبل شخص ته هم مناسب نه ده چی هغه ځای ونیسی که یې له اوله لاځادر اچولی وو بیا په خپل کاروبار لګیا وو دلمانځه وخت راغی او هغه ځای نیول شوی وو دانیك کار نه دي په دي حالت کښی که ځای تنګ وو اوبل څوك راغی هغه قادر لیرې کولای شي اوهلته دي کښینی که ځای تنګ نه وو بل ځای دي کښینی .

(فتاوی محمودیه ۱۹۵ ج ۲ دمراقی الفلاح ۳۵۹ په حواله).

مسئله : دامیر یا بل چا لپاره په عیدګاه یا مسجد کښی په اول صف کښی دځای پریښودلو حق نشته څوك چی لومړی راغلل هلته کښیناستل دهغه حق دی دهغه ولاړول هم دچا حق نه دی .

(فتاوی محمودیه ج ۱۰ ص ۱۵۳ احسن الفتاوی ۴۵۷-۲).

مسئله : په مسجد کښی هرچا ته په هره بدنی داودس کولو حق دی همداسی هرڅوك دمسجد په هره برخه کښي لمونځ کولای شي. څوك دکوم امتیاز له امله بل شخص دکومي بدني له استعمال یا دکوم ځای له لمونځ کولو څخه منع کولای نشی خوداځه ستونزه نه ده چی څوك په خپله په یوه بدنی دلویوالی یابل صفت له امله اودس کوی اوپه بله یې نه کوی که کوم شرعی عذر نه وو دلمانځه لپاره یوځانګړی ځای مشخص کول منع دی .

(فتاوی محمودیه ۲۲۰-۲).

مسئله : دمسجد بدنی دي څوك بهرنه وړی دمسجد دلمانځه فرش دي هم ترمسجد بهر نه استعمالوی په تیره بیا دکښیناستلو اوخبرو کولو لپاره.

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ – ۲۰۲).



## په مسجد کښی روژه ماتی کول

مسئله : په مسجد کښی خوړل ، څښل مکروه دي ، خو دضرورت په وخت کښی جائز دي که له چا څخه دجماعت لمونځ تیریده داهم عذر دي که له مسجد څخه بهر داسی ځای نه وو چی روژه ماتی وکړی نو په مسجد کښی ورته روژه ماتی صحیح دی خو چی دمسجد دپاکوالی خیال وساتل شی ددي لپاره دي کومه توټه هموار وي ترڅو مسجد له ناولتیا څخه وساتل شی غوره داده چی تر روژه ماتی لږ مهال وړاندی داعتکاف نیت وکړی اومسجد ته دی ننوزی ځکه دامام محمد رحمه الله په نزد دیوه ساعت لپاره هم اعتکاف صحیح دی .

(امداد الاحکام ۴۵۴-۱ احسن الفتاوی ۴۵۷-۲).

## دمسجد له عوایدو روژه ماتی کول

مسئله : په روژه کښی دمسجد له عوایدو « موقوفه دوکانونو یا کورونو کرایه » لمونځ کوونکو ته هغه وخت روژ مات جواز لري چي وقف کوونکی اجازه کړی وي پرته له اجازې جواز نلری خوکه دوقف کوونکی له وخت څخه همداسی عادت پاته وو بیاهم صحیح دي .

(فتاوی محمودیه ۱۸۰-۱۸).

مسئله : په مسجد کښی په خپل مصرف روژه ماتی اوپیش لمی صحیح دی خو چی مسجد ناولی نشی که مسجد ته نژدی وي نو روژه ماتی که بهر وي ورته غوره دي خو داحکم د معتکف لپاره نه دي .

(فتاوی محمودیه ۵۰۹-۱).

## دمسجد له شتمنۍ څخه حافظ ته انعام ورکول

پوښتنه : که دتراويح په ختم يا نورو شپو کښې دمسجد له عوايدو څخه په حافظانو انعامونه وويشل شي خودوقف کوونکی له لوری داسې اشاره نه وي جواز لری ؟

ځواب : په تراويح کښې دقران کريم دويلو له امله چاته روپۍ ورکول صحيح نه دي خو که همدا حافظ ددي مسجد هميش امام وو بيا په روژه کښې ورته په معاش کښې د مسجد له شتمنی څخه زياتوالی کول جائز دي .

(فتاوی محموديه ج ۱۸ ص ۱۸۰)

## په مسجد کښې کښيناستل اوپکه لګول

پوښتنه : په مسجد کښې څوك هستوګنه کولای شي ؟ په مسجد کښې څوك ټوله شپه پکه لګولای شي ؟

ځواب : که څوك معتکف وي يا مسافر وي چې بل ځای ونلری نو هغوی ته په مسجد کښې دهستوګنې جواز شته که څوك دتهجد يا دسهار دلمانځه لپاره په مسجد کښې اوسی هغوی ته هم اجازه شته خو له مسجد څخه دځان لپاره خوب ځای جوړول ښه نه دي .

دمسجد پکه اورڼا په اصل کښې دلمانځه لپاره دي ترڅو عام خلګ لمونځ کوی ترهغه دي استعمالوی که يې دلمانځه دوخت څخه هاخوا استعمالوی په بدل کښې به يې دمسجد خدمت کوي .

(فتاوی محموديه ۱۰-۲۰۱ ،کتاب الفقه ۴۲۰-۱).



## دمسجد په بام باندې لمونځ کول

پوښتنه : په ځينې مسجدونو کښې دماپښين اومازيګر لمونځونه دلاندې ګوی خو دتودوخې له امله دماښام اوماخستن لمونځونه پاس په بام کوی اوهلته په بام محراب نه وی

ځواب : اصل مسجد لاندې دي اوچت يي تابع دي په بام پرته له ضرورت څخه ګرځيدل مکروه دي مسجد پريښودل اوپاس لمونځ کول دسنت خلاف دي که ځای تنګ وي بيا په بام دريدل څه خبره نه ده اوکه تودوخه دزغم ورنه وي بياهم يه بام لمونځ کول کراهت نلری ،دمحراب نه شتون باك نلري

(فتاوی محموديه ج۱۰ ص۲۰۱ ).

مسئله : دګرمي له امله دمسجد په بام لمونځ کول مکروه دي. که دلمونځ کوونکو دزياتوالی له امله دلاندې ځای نه وو نو زيات خلګ پورته دريدلای شي په دي صورت کښې کراهت نشته ځکه مجبوري ده .

(فتاوی محموديه ۲-۴۴۹ احسن الفتاوی ۴۲۲-۲

مسئله : مسجد هغه دی چی وقف وي کوم ځای چی وقف نه وی هغه مسجد نه دی نو ځکه هلته دجماعت ثواب ترلاسه کيږی خودمسجد ثواب ورته نه رسيږی پرته له وقف څخه په کوم ځای کښې لمونځ کولو ته اجازه ورکول ، نه مسجد کيږی که پرته له مسجد څخه دجماعت لمونځ وشی ورته داوه ويشتو لمونځونو ثواب ورکول کيږی اودمسجدثواب تردي زيات دي .

(امداد الاحکام ج۱ ص۴۴۸ ).

## دمسجد په انګړ کښي دجماعت حکم

پوښتنه : دمسجد په انګړ کښی دګرمی له امله دجماعت لمونځ کیدلای شی ؟ ځکه څوك وایي چی رسول الله ﷺ کله هم دمسجد په انګړ کښی لمونځ کړی نه دي.

ځواب : دچاهمدااوینانا سمه ده مسجد دوه برخی لری پټه برخه اولو څه برخه په دواړو کښی لمونځ په جماعت سره جائز دي فقها همدا برخی دصیفی اوشتوی ( اوړی اوژمی ) مسجدونه یادوی اوپه دواړو کښی جماعت کول پرته له کراهته جائز دي.

همدانومونه په خپله دلیل دي، چی په لوڅ مسجد کښی په اوړی اوپه پټ مسجد کښی په ژمی کښی لمونځ کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ج۴ ص۱۲۵ ، دردا لمحتار ج۱ ص۵۳۱ په حواله).

مسئله : دلمانځه په حال کښی دمسجد له انګړ څخه دننه تلل لمونځ فاسد وي ځکه داعمل کثیر دي.

((فتاوی دارالعلوم ج ۴ ص ۵۷ دردالمحتار ج۱ ص۵۸۴ په حواله)).

مسئله : په مسجد کښی دننه دوه دری کسان دریدل صف جوړول صحیح دی خو یو تن دریدل مکروه دي.

(فتاوی محمودیه ج ۲ ص ۲۴۱).

## که امام دیو، دوو صفونو ځای پریږدي اوشاته ودریږی

پوښتنه : که مسجد زیات ستر وو او لمونځ کوونکی دیو دوو صفونو په اندازه وو امام کولای شی یو دوه صفه ترمحراب شاته ودریږی ؟

ځواب : دجماعت ټول ځای یو ځای دي یو حکم لری . نو امام که دیو دوو صفونو په اندازه له محراب څخه شاته ودریږی باك نلري.

((فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۲۴۸).



مسئله : که په مسجد کښی ځای تنګ وو دامام ښی اوکیڼ لور ته مقتدیان دریدلای شی چی دامام پښی ترمقتدیانو وړاندي وي.

(فتاوی محمودیه ۳-۲۴۳-۲).

## په مسجد کښی په لوړ اواز ذکر کول

مسئله : که چاله کوم رښتونی مرشد سره بیعت وکړ اوهغه ورته دجهر د ذکر کولو وویل هغه دي له لار ښوونی سره سم « بیل بیل ، په لوړ اواز ( جهر ) سره خپل ذکر کوی خو که په مسجد کښی په جهریه ذکر سره لمونځ کوونکو ته تشویش پیدا کیږی بیا په مسجد کښی جائز نه دي.

(فتاوی رحیمیه ج۱۰ ص ۲۳۸).

مسئله : که دلمونځ کوونکو اوبیدو خلګو لپاره ضرر اومزاحمت نه وو نو په جهر سره ذکر کول بهتر دي له هغه څخه زړه بیداریږی خوب ځی اوداسی اطاعت لپاره بدنی ځالاکی پیدا کیږي.

(کتاب الفقه ج۱ ص۴۵۵).

## دمسجد په دیوالونو قراني ایت لیکل

مسئله : دمسجد په دننه اوبهر کښی قرآنی آیتونه او نور دتعظیم وړ عبارات لیکل منع دي دبي ادبی داحتمال له امله فقهاوو دلیکلو اجازه ورکړی نه ده.

(فتاوی رحیمیه ۲۴۳-۱۰ درمختار ۴۴۰ اوشامی ۲۲۰-۱ په حواله).

# په مسجد کښې سیاسي وینا کول

زموږ په زمانه کښې په مسجدونو کښې سیاسي وینا کول عام شوي دي اودمسجد دادب اواحترام لحاظ هم نه ساتي دایو خوښ عمل نه دی داسي بي مسئولیته وینا به په مسجدونو کښې څرنګه جائزه وي په حدیث شریف کښې راځي «مسجدونه له ماشومانو، جګړو، لوړغږ، دحدودو تطبیق، دتورو له کښلو وساتی» (ابن ماجه باب مایکره فی المساجد».

که دیني خبري په مسجد کښې کیږي څه مشکل نلري بلکې دادمسجد په مقصد اوهدف کښې راځي یا داسي سیاسي خبري چې له دین سره تړ اولري په نبوی دور کښې نبوی مسجد دهمداسي خبرو مرکز وو خودمسجد اداب، احترام او اکرام په هرحال کښې لازمي دي.

دابن ماجه په روایت شوي حدیث کښې ولیدل شول چې په مسجد کښې به اواز نه لوړوي صحابه کرام په دي لار کښې زموږ دلاري څراغونه دي اودنبوی دربار اطاعت کوونکی سائب بن یزید ؓ وایي «یوه ورځ دمسجد دره ووهل شوه غږ مو واورید وموليدل عمر ؓ وو دوو کسانو ته یي اشاره وکړه چې په مسجد کښې یي شور جوړ کړی وو ویي ویل: هغه دواړه راولی دامر مطابق مو هغه دواړه وروستل، عمر ؓ ورڅخه وپوښتل: دکوم ځای یاست؟ هغوی دطائف نوم واخیست دایي واوریدل ویي ویل: که دمدینې هستوګنه وایي سزامي درکوله، تاسو درسول الله ﷺ په مسجد کښې شر اوشور کوی ځی نن په دي معاف یاست چې دبهر هستوګن یاست. ((بخاري ج۱ ص ۲۷).



عمر ؓ په دي کار کښې ډیر سخت وو دمسجد مره بي حرمتی به یي زغملای نه شوای که به ماشومانو لوبی کولی، په دره به یي پوهول، ترماخستن وروسته به یي دمسجد حال معلوماوو.

په نسائي کښې روایت دي چې یوه ورځ یي لوړ غږ واورید، ګرځندی راغی ویي ویل: پوهیږی تاسو چیري یاست؟
(تفسیر ابن کثیر ج ۳ ص ۳۹۳).

په دي هکله اختلاف دي چې لوړ غږ مطلقا حرام دي اوکه په مقید ډول؟ داکثریت رایه داده چې که دیني یا دنیای ضرورت وو یا دمسلمانانو په ګټه وو نو روا ده اوکنه نو ناروا ده.
(په اسلام کښې دمسجدونو نظام ۱۹۷).

**مسئله**: دمسجد دادب اواحترام په هکله خلګ ډیر بي پروا دي داسي کارونه په مسجد کښې وړنه دي له دیني مجلسونو پرته نور سیاسي ناستي چې له شرعی مسجد څخه بهر بل ځای کیږي خورا غوره دي.
عمر ؓ له مسجد څخه بهر په یوه څنډه کښې یوه چوتره (صفه) جوړه کړه اوخلګو ته یي وویل که شعرونه وایاست په لوړغږ غږیږی یا بل کار کوی چوتری ته ځي.
(عالمګیری ۲۵۱-۲ فتاوی رحیمیه ج ۲ ص ۱۰۵ دمشکوة شریف ج ۱ ص ۷۱ په حواله).

**مسئله**: مسجدونو نه دنیا یي انتخاباتو ته جوړشوی نه دي داسي کار په مسجد کښې کوی، که یي څوك کوي، په غلطه روان دي.
(فتاوی محمودیه ج ۱۵ ص ۱۸۷).

**مسئله**: په مسجد کښې دتبلیغ اووعظ لپاره جلسه یا مشوره کول او ورته راغونډیدل جائز دي.
(کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۴۴).

## په مسجد کښي په چوکۍ کښیناستل اووعظ کول

پوښتنه : اکثر علماء په مسجد کښی په چوکی کښیني اووعظ کوی ، آیا داروا ده؟

ځواب : دمسلم شریف لومړی ټوک ۲۸۷ مخ کښی روایت شته چې رسول الله ﷺ په مسجد کښی په چوکۍ کښیناستلی اووعظ یې کړی دي .

په الادب المفرد ۲۱۰ مخ کښی هم امام بخاری دایادونه کړی ده ، هغه څه چې له حدیث څخه ثابت دي اعتراض ورباندي دنه معلومات له امله ده .

(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۲۸۹ ).

مسئله : دمسجد ټاټ ، دری ، سطرنجی یانورڅه بهر وړل اوپه کومه جلسه کښی استعمالول جائز نه دي .

(کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۰۷ ).

## په مسجد کښی دمسجد لپاره چنده کول ( مرسته غوښتل )

پوښتنه : آیا په مسجد کښی دمسجد لپاره مرسته غوښتل اوټولول جائز دي ؟

ځواب : غوره صورت یې دادي چې ترمسجد بهر چنده ټوله شي یاپه مسجد کښی په یوه تخته باندي دمرستي غوښتنه ولیکل شي که په داسی طریقه سره دچندې په اندازه کښی نیمگړتیا وه نوبیا دجمعی په ورځ دمسجد لپاره په مسجد کښی دچندې ټولول روا دي چې لمونځ کوونکو ته تکلیف نه وي دلمانځه ترمخ تیر نشي شور اوغالمغال نه وي ، دمسجد دادب خلاف کار پکښی نه وي داسی مرسته ونه غوښتله شي چې دچا دخجالت سبب وگرځي یا په زور واخستله شي .

ددې شیانو مراعات ضروري دي که داسی احتیاط کیدلای نشي په مسجد کښی چنده ټولول جواز نلري



(فتاوی رحیمیه ج ۹ ص ۲۴۰ امداد الفتاوی ۲۴۱-۲ ).

## په مسجد کښي قضائي لمونځ کول

قضا شوی لمونځ په مسجد کښی راگرځول مکروه تحریمی شوی دي دلیل یې دادی چې لمونځ ځنډول معصیت دي نو هغه باید ښکاره نشي ،شامی په دي هکله لیکی چې دقضا لمانځه اظهار دي څوك نه کوی قضا دلمونځ دي داسی وکړی چې څوك ورباندی ونه پوهیږی که یې په مسجد کښی قضا دلمونځ کاوو خلگ باید ونه پوهیږی چې نفل لمونځ کوی که قضای په همدی شکل بیاپه مسجد کښی هم صحیح دي عرض دادی چې قضای لمونځ دي داسی را وگرځول شی چې تر ممکن حده څوك ورباندی ونه پوهیږي .

(فتاوی دارالعلوم ۴-۳۲۹ ددرمختار باب القضاء ۱-۲۹۵ په حواله ).

## په مسجد کښی قربانۍ کول

مسئله : کومه برخه چې مسجد ده یعنی دلمانځه لپاره وقف ده اوهلته لمونځ کیږی په هغه ځای ( دمسجد دننه ) قربانی کول حرام دی ځکه په ناپاکه وینه مسجد ناولی کیږی په احاطه کښی چیری چې بوټونه ایښودل کیږی هم ذبح کول جائز نه دي ځکه هغه ځای دذبح کولو لپاره وقف شوی نه دي بل ځای دي ذبح ( حلاله ، قربانی ) وشي .

(فتاوی محمودیه ج۱۲ ص ۲۹۵ ).

مسئله : دقرباني په وخت کښی دمسجد بوریا استعمالول جائز نه دي داسي دي کوي چي دمسجد زړه بوریا دي دنوی په بدل کښی له متولی څخه واخلی اوهغه زړه بوریا به بیا دده په ملکیت کښي وي

(امداد الاحکام ج۱ ص ۴۵۵ ).

مسئله : دمحرم په لسمه کښې راټولېدل اونفلونه کول له رسول الله ﷺ څخه ثابت نه دي۔ (فتاوی رحیمیه ج ۶ ص ۱۹۱).

## مسجد ته ورکړل شوي شیان لیلام کول

**پوښتنه** : مسجد ته خلګ چرګان ، هګی ، جامې اونور څهٔ دخدای ﷻ په نوم ورکوی هغه بیا لیلامیږی ، داصحیح دي ؟ داسی هم کیږی چی لیلام شی واخلی بیرته یې مسجد ته ورکوی .

**ځواب** : که داسی لیلام دمسجد دګټې لپاره وي صحیح دي ، که پکښی نوم اوشهرت مقصد وي صحیح نه دي. (فتاوی محمودیه ۱۵-۲۱۸).

**مسئله** : که مسجد ته څوك څه شی اوصدقه ورکوی هغه دبی وزلو حق دي اوکه یې دمؤذن یا نورو په نوم ورو ړی هغه دهغوی حق دي . (فتاوی محمودیه ۱۵-۲۰۴).

## دمسجد واړه شیان لیلام کول

**پوښتنه** : که دمسجد فرش زوړ شوی وي هغه اړوی اونوی فرش اچوی ،ایا دزاړه ستنې توتې دخرڅلاو لپاره لیلام کیدلای شی ؟ اواخستونکی یې بیا دخپلې ودانۍ په تهداب کښی ایښودلای شی ؟

**ځواب** : هغه اخستل ،په تهدابونو کښی ایښودل شرعا جائز دي . (فتاوی محمودیه ۱۵-۲۴۸ کفایت المفتی ۳- ۱۲۳).

**مسئله** : همداشیان اخستل کیدلای شی اودقیمت یې دمسجد په وقف کښی شامل کیدلای شی یا مسجد ته بل دضرورت وړشی ورباندی اخستل کیدلای شوای دزاړه مسجد همداسی توتې په نوی مسجد کښی استعمالیدلای شی خو له ناولتیا څخه یې ساتل ضروري دي یعنی همداستنې توتې یا نور څه دي په بیت الخلاء داودس کولو په ځای یادغسل کولو په ځای کښی نه لګول کیږي .



(فتاوی رحیمیه ۶-۱۰۵ د در مختار مع شامی ۱-۱۲۵ په حواله ).

## دکورونو خرڅول اودمسجد ورانې

**پوښتنه** : که څوکاله ، کلي اومسجد ودان وو ، خو له کومه مجبوریته همدی کلیوالو په غیر مسلم خلګو خپل کورونه خرڅول ، دمسجد خیال یې نه ساته ، څو مسجدهم وران پاته شو داسی خرڅول څرنګه دي ؟

**ځواب** : چیري چی خبره دکورونو دخرڅولو ده هغه دمالك حق دي په شرعی ډول ایجاب اوقبول سره بیع صحیح ده خو حالات دي وګوری که مجبوریت نه وي داسی دي نه کوی اوکه مجبوریت وي بیا خو هجرت هم ثابت دي . (فتاوی محمودیه ۱۵-۲۳۵)

## دمسجد په پیسو دبل چا دکور دیوال جوړول

**مسئله** : دمسجد په پیسو دپردي په مقصد دبل چا دیوال ودانول جوازنلري خو دمسجد په دیوال یې بناء کول جواز لري که دمسجد په دیوال پرده نه راتله نو که دبل دیوال څښتن بې وزله وي کلیوال دي ورسره مرسته وکړي ترڅو یې په دیوال سره پرده وشي . (کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۳۱).

## په مسجد کښي دنکاح یا نورو مراسمو په وخت دبرق استعمال

**مسئله** : اصل خبره داده چی دداسی کارونو لپاره دي دبرق انتظام په خپله خلګ کوی دمسجد برق اوپکه دي نه استعمالوی حد او اندازه خوداده چی دلمانځه لپاره دمعمول وخت په زیات وخت کښی که څوك تلاوت کوی یا کوم دینی کتاب ګوری هم ورته دمسجد دبرق اوپکی داستعمال اجازه نشته خو نن سبا یوغلط رواج راغلی دي چی دبرق

اویکې په ممانعت فساد اوجګړه پیښیږي نو که همداسې احتمال وو بیا
دې دزیات وخت دبرق داستعمال مصرف مسجد ته ورکړل شي .
(فتاوی رحیمیه ۱۰۷-۲ ).

مسئله : په مسجد کښې دنکاح تړل مستحب دي .
(کتاب الفقه ۴۵۶-۱ ردالمحتار ۷۱۹-۱ ).

مسئله : دمسجد برق مسجد ته ځانګړی دي په داسې کارونو کښې یې
استعمال جواز نلري چې په هغه کښې دمسجد خیر اومصلحت نه وي
دیوه مسجد دشیانو استعمال په بل مسجد کښې جواز نلري نو په عامو
مواردو کښې به څرنګه جواز ولري دمسجد دمشرانو داجازې په داسې
خلاف الشرع کار کښې هیڅ رول نشته .

مسئله : دامام او مؤذن خونې چې دمسجد اړوند دي هغوی ته له مسجد
څخه برق ورکول جائز دي که مدرسه دمسجد مربوط وه ورکول کیدلای
شي خو خلګ به خبر وي اوداسې ممانعت به یې کړی نه وي چې زموږ
مرسته دې مدرسې ته نه ورکوله کیږي که مدرسه دمسجد مربوط نه وي
دمسجد برق ورکول جواز نلري خو که بیه ورکړي جواز لري دمسجد
اړوند شیان بل ځای حتی بل مسجد ته ورکول ناروا دي .
(احسن الفتاوی ۴۴۲-۲ ).

## که غیرمسلم مسجد ته بدنۍ یا روژه ماتې واستوي

مسئله : که کوم غیرمسلم دثواب په نیت بدنۍ ورکړي دمصلحت خلاف
نه وي داودس کولو لپاره هغه اخستل روا دي همداسې که روژه ماتې
دثواب په نیت واستوي او دبل مصلحت خلاف نه وي اخستل یې جواز
لري
(فتاوی محمودیه ۴۲۲-۲ ).



## دمسجد بدنۍ خپل کار ته وړل

مسئله : دمسجد بدنۍ دټولو کارونو لپاره استعمالول جائز نه دي
یوازې داودس استنجاء اوغسل لپاره استعمالیدلای شي داوبو څښلو
یا دجامې کوم ځای دلمانځه لپاره ورباندې مینځل جواز لري له مسجد
څخه بهر وړل کوريې استعمالول جواز نلري .
(فتاوی محمودیه ۱۳۶-۱۰ ).

## دمسجد په فرش ( غولي ) اودس کول

مسئله : دمسجد دغولی په هغه برخه چې دلمانځه لپاره ځانګړې شوې
وي داوداسه لپاره نه وي که داوداسه لپاره ځای معلوم وي هلته دې
اودس وشي کنه له غولی څخه لرې دې وشي داودس مستعملې اوبه په
غولی تویول منع دي .
(فتاوی محمودیه ۱۳۷-۱۰ کتاب الفقه ۴۲۱-۱ ).

## دمسجد ترودانولو وروسته داودس کولو ځای جوړول

پوښتنه : په مسجد کښې دننه داودس کولو هیڅ ځای نشته ، وروسته
مسجد جوړوونکي دمسجد په غولی داودس کولو ځای جوړ کړ ،
داجواز لري ؟

ځواب : کوم ځای چې دلمانځه لپاره ځانګړی شوی دي که هلته داودس
کولو لپاره ځای جوړیږي اوهغه ځای له لمونځ کولو وزګ ، جواز نلري .
(فتاوی محمودیه ۲۵۷-۱۲ ).

## په مسجد لوحه ځوړندول اوکرایه وربانديِ اخستل

پوښتنه : که مسجد په عامه لار کښې وو هلته په مسجد باندې داعلان په خاطر بورډ (لوحه) ځوړند کول جواز لرې ؟ داکار په دې غرض کیږې چې وربانډې دمسجد لپاره کرایه اخلی .

ځواب : دمسجد دضروریاتو دپوره کولو لپاره دوکانونه جوړیدلای شي چې ور باندې کرایه واخلی خو په خپله په مسجد کرایه اخیستل نارواده داسي کار دې هیڅکله نه کیږي .

(فتاوی محمودیه لسم ټوک۱۷۲مخ فتاوی رحیمیه ۹.۲۵)

## په مخلوط شتمنۍ مسجدجوړول

پوښتنه : په یوه محله کښې داسې پیښه شوه چې زوړ مسجد یې وران کړ دنوی کولو لپاره یې په اعانه کښې دیرش،دیرش زره تر لاسه شوی هغه روپې په بانك کښې ایښې وی ور سره دبانك سود هم پنځلس زره شو دسود پیسې تری بیلی نه شوی اوټولی پنځه اویا زره روپې پکښې ولګیدی نو له شپیتو زرو اعانې سره پنځلس زره دسود رقم هم پکښې مصرف شو له همدې امله څو کسان دمسجد ورتلو څخه منع شول شرعی مسئله څرنګه ده؟

ځواب : دبینك دسود شرعی حکم داسې دی چې پرته دثواب له نیت څخه دې بیوزلو خلکو ته ورکړل شي( رد المحتار) دداسې رقم مصرف کول په مسجد کښې جواز نلری ځکه « طیب لایقبل الاالطیب » اوس چې کومې پیسې په هرمسجد کښې مصرف شوی دي دهغه تلافی اوجبیره داده چې دمسجد په نوم پنځلس زره روپې ټولی شی اوبیاً په اړو مسلمانانو وویشلی شی مسجد دي په خپل ځای پاته شی اولمونځ



پکښې پرته له کراهت څخه صحیح دي مسجد ته کوم زیان رسول یا پکښي لمونځ نه کول صحیح کار نه دي

مسئله : په حرامو پیسې څه اخیستل څه تفصیل غواړي ځینې صورتونه دي چې بیع یې بالکل ناروا ده اوهلته پکښې حرمت پیښیږي ځینې ځایونه حرمت نه راځی اوبیع روا وي که په حرامو معلومو پیسو ځمکه واخستله شوه اومسجد یې جوړ کړ داچې هغه ځمکه دده په ملکیت کښې نه ده نو هغه هم مسجد نه بلل کیږي خوکه یې پیسې مشخصې نکړې په ناروا پیسو یې واخستله خو وروسته یې له حلالو پیسو هغه بیه ورکړه اوبیا یې وربانډې مسجد جوړ کړ صحیح دي وقف دي اومسجد بلل کیږي لمونځ پکښې صحیح دي اوکه لوموړي صورت وو بیا هم له هغه مسجد سره بې احترامی کول ناجائز دي خو لمونځ پکښې مکروه دي تر څو یې پوره تحقیق شوی نه وي مسجد بلل کیږي

((فتاوی محمودیه ص ۱۷۰ - ۲اودرمختار۱۴۲-۵ په حواله ).

## یوسل او دیرش مسئلې

مسئله : له دولتی ټانکی څخه که دقانون خلاف نه وواودښار والی اجازه وه مسجد ته اوبه راوړل روا دي . (محمودیه ۱۸۸-۱۵)

مسئله : په مسجد کښې په لوړ اواز تلاوت کول چې لمونځ کوونکی ته ضرروي جائز نه دي. (احسن الفتاوی۴۵۸-۲)

مسئله : په مسجد کښې دکور سامان مه ږدي داداعتراض وړ خبره ده . که په مسجد کښې داوداسه ځای ، برنډه یابل ځای وو هلته یې کښیږدي داسې کتابونه چې لمونځ کوونکی تری ګټه اخستلای شی په مسجد کښې یې ایښودل حرج نه دي .

مسئله : په مسجد کښی دینی کتابونه لوستل ، ددینی معلومات لپاره څه لیکل صحیح دي.
(فتاوی محمودیه ۱۹۸-۱۵).

مسئله : دمسافر لپاره دمسجد لوازم استعمالول دفتوی له رویه صحیح دي خو دتقوی له مخی احتیاط پکښی غوره دي حرام نه دي.
(فتاوی محمودیه ج۱ ص ۴۷۹)

مسئله : که دمسجد کتابونه امام کورته یوسی اومطالعه کوی یي هلته جائز دي چی دمرسته ورکوونکو خلګو ورباندي علم وي که دهغوی اعتراض نه وو نو کافی ده که دمرسته کوونکو له لوری امام دمسجد دپیسو مالك پیژندل شوی وو بیا هم اعتراض نشته.
(محمودیه ۱۹۸-۱۵).

مسئله : دمسجد کومه برخه دځانی ضرورت لپاره ځانګړی کول روا نه دي تر دي چی دلمانځه لپاره کوم ځای ځان ته مشخص کول جائز نه دي داسی چی له هغه ځایه څوك منع کړای شي.
(فتاوی محمودیه ۱۲۲-۱۵).

مسئله : دمسجدلپاره وقف شوی ځمکه که په کرایه ورکړل شی یا وکرله شی اوپیسی یي په مسجد مصرف شی جائز دي که ونی ورباندی کښېنودل شی اومیوه یي خرڅۀ شی پیسی یي په مسجد مصرف شی روا دي.

مسئله : کومه ځمکه چی دلمانځه لپاره مشخصه شوی ده هلته امام یا بل چالپاره خونه جوړول جواز نلري.

مسئله : کومه ځمکه چی دمسجد لپاره وقف شوی ده هلته دبل مسجد ودانول جائز نه دي نه به په بل مسجد خرڅیږی ، نه به یي پیسی ورکول کیږی خو که زوړ مسجد ورانیږی اوهلته مسلمانان نه پاته کیږی اوله



موقوفه ځمکی سره مسلمانان وي اومسجد ته اړتیا ولری بیا دبل مسجد بنا ورباندي صحیح ده اولمونځ پکښي جائز.
(محمودیه ۱۷۲-۱۵).

مسئله : دمسجد دننه ناوړی توکول پوزه سوغ وهل حرام دي له نارو ، ډېزی له اوبو او بلغمو مسجد پاك ساتل واجب دي غولی اودیوال یو حکم لری که په فرش دپاسه وي که دلاندي که څوك داسی وکړی پاکول یي واجب دي دافرق نه کوی چی دمسجد غولی دختی دي دډبرو دي اوکه دبل څه.
(کتاب الفقه ۴۵۸-۱).

مسئله : پوزه پاکول اوګوتی په دیوال پسی موښل دتهذیب خلاف خبره ده دنورو خلګو داذیت سبب او له مسجد سره بي پروایي ده.
(فتاوی محمودیه ۱۵-۲۰۲).

مسئله : په مسجد کښی ویښتان اخستل روا دي خو چی ویښتان تیت نه شي.
(محمودیه ۴۸۱-۱).

مسئله : که دمسجد پیسی د نصاب حد ته ورسیدلی زکات ورباندي نشته ناروا شتمنی په مدرسه اومسجد کښی لګول جائز نه دي دهمداسی شتمنی صدقه کول ضروري ده.
(فتاوی محمودیه ۱۴۲-۱۴).

مسئله : دمسجد پیسی چی ددکانونو دکرایی یا په کومه خوشحالی کښی ترلاسه شوی وي که ورڅخه دامام معاش ورکړی یا دغسل په ځای ولګیږی جائز دي.
(فتاوی محمودیه ۲۲۱-۱۴).

مسئله : که په مسجد کښی څه شی وموندل شو ، په مسجد کښی دي دومره اعلان کړی چی دمالك دپیداکیدلو توقع یي نشته ، داسی بي وزله ته دي ورکړی چی دزکات اخستلو مستحق وي.
(فتاوی محمودیه ۱۵۵-۱۰).

مسئله : دمسجدد صف ( درۍ ، سطرنجۍ ) چې لمونځ ورباندې شوی
وي په لاس دي غوړیږي په پښو يي تړلول اوهموارول بي ادبي ده .
(فتاوی رحیمیه ۱۲۵-۳)

مسئله : ناولی اوحایضه مسجد ته دننه تلل جائز نه دي .
(فتاوی محمودیه ۱۵۸-۱۰ شامی ۴۴۱-۱)

مسئله : دمسجد توهین کول ، ورته ښکنځل کول ډیره خطرناکه خبره ده
، ایمان سلامت نه پاته کیږي داسی سړی ته توبه لازمه ده بیا دي داسي
لفظ نه وايي چې دمسجد اهانت پکښي وي .
(فتاوی محمودیه ۴۲۹-۱۷)

مسئله : که حوض لس په لس لاسه ( ذراع ) وي ناولی نه وي ، دهغه خټه
ناولی نه ده ، هغه په مسجد کښې کارول کیدلای شي .
( محمودیه ۲۱۲-۱۷ )

مسئله : دمسجد په دیوال تیمم کول مکروه دي ځکه دوقف مال ده اوبې
ځایه تصرف پکښې کیږي خو که وشي صحیح دي که له مسجد څخه
توړل شوی چینه یاخته وه صحیح دی خوچي پاکه وي .
(امداد الاحکام ۴۴۰-۱)

مسئله : په مسجد کښې نسوار کول ، تنباکو څکول خلاف اولی عمل
دي ځکه له تنزیهي مکروه څخه خلاص نه دي . (امداد الاحکام ۴۲۲-۱)

مسئله : دخلګو ډیروالی له امله که ترمسجد بهر په امام پسی اقتداء
وشی ، دمسجد ثواب نه کمیږي خو چې صفونه ترهغه ځایه متصل وي .
(امداد الاحکام ۴۵۷-۱)

مسئله : په مسجد کښې دخلګو دځښلو داوبو انتظام کول کوم حرج نه
دي .



مسئله : په مسجد کښې دهوا لپاره کړکی پریښودل روا دي خو
دکنیسی او ګرجی په توګه به نه وي بلکې دمسجد په ډول به وي .
(امداد الاحکام ج۱ ص۴۵۲ )

مسئله : که څوك دجماعت په نیت مسجد ته راغی خوجماعت ورځخه
تیرشوی وو الله ﷻ ورته دجماعت ثواب ورکوی خو په دي شرط چې هغه
به په قصدی توګه ځنډیدلی نه وي .
(مظاهر حق ۱۰۴ ج۲ حدیث ۱۰)

مسئله : په کوم مسجد کښې که دجماعت دلمانځه انتظام وو وخت يي
معلوم وو ، امام تاکلی وو ، په هغه مسجد کښې دوهم جماعت مکروه
(کفایت المفتی ج ۳ ص ۱۰۲)
دي .

مسئله : داقتداء په لحاظ عیدګاه اودجنازې دلمونځ ځای حکم دمسجد
(عالمگیری ۷۰ص)
په څیر دي .

مسئله : که امام په لاندې پوړ کښې وي اومقتدیان په پاسنی پوړ کښې
ولاړ وي دالمونځ جائز دي خو په دي شرط چې مقتدیان تر امام وړاندې
ولاړ نه وي دامام وړاندې والی ضروری دي .
(ردالمحتار ج۱ ص ۲۱۴)

مسئله : دکلي په مسجد کښې که مؤذن نه وو لمونځ کوونکی دي اذان
وکړي بیادي لمونځ وکړي ، که تنها هم وي ځکه دادمسجد حق دي .
(غایة الاوطار ۳۰۳-۱)

مسئله : که په یوه کلي کښې څومسجدونه وو که يي فاصله برابره وه په
پخوانی کښې دي لمونځ کوی اوکه فاصله یو برابر نه وه بیا دي نژدي
مسجد ته ورځي (پخوانی ماخذ).

مسئله : دعیدگاه اودجنازی دلمانځه دځای دي احترام دمسجد په ز
کیږی له بولو گنګی اوجماع څخه دي خوندي ساتل کیږي .

(طحطاوی علی الدرج۱ص۳۲۹)

مسئله : دمصیبت له امله په مسجد کښی اوپه بام یي کښېناستل
مکروه دي .

(رد المحتار ۱-۷۱۹)

مسئله : دمسجد پناه هغه ځای دي چی دهغه ځای اومسجد تر منځ
کومه لاره نه وي داقتدا په هکله دمسجد پناه دمسجد حکم لري .

(پخواني ماخذ)

مسئله : دعامی لاري مسجد چی دجماعت پابندي پکښی نه وي
دمسجدحکم لری خو اعتکاف پکښی جائز نه دي .

(رد المحتارج۱ص۷۱۹)

مسئله : دمسجد پناه ، خانقاه ، دمدرسی مسجد چی کومه خونه یي
دلمانځه لپاره ځانګړی کړی وي ، دحوض په غاړه چی لمونځ کولو ته یي
ټاکلی وي په بازار کښی چوتره چی دلمانځه لپاره معلومه شوی وي
داټول دمسجد حکم نلری حایضه میرمن اونور ورتللای شي .

(رد المحتارج۱ص۷۱۵)

مسئله : په مسجد کښی ناوړه شعرونه ویل مکروه دي خو حمد ، نعت
اودنصیحت وړ اشعار ویل جواز لری خو چی لمونځ کوونکی یا ذکر
کوونکی ته تکلیف نه وي .

(رد المحتار ۱-۷۱۹)

مسئله : په لوړ غږ په مسجد کښی ذکر مکروه دي خو دفقه درس ویلای
شی ، چی لمونځ کوونکو ته ضرر نه وي همداسی دتفسیر اوحدیث
درس هم جواز لري .

(رد المحتار۱-۷۱۸)



مسئله : دضرورت په وخت کښی مسافر او کور والا په مسجد کښی
بیده کیدلای شی خو ځان ساتل ورته غوره دی .

(عالمگیری ج۲ص۲۶۵)

مسئله : کوم کار چی ددنیا دي هغه په مسجد کښی مکروه دي .

(پورتنی ماخذ)

مسئله : که څوك ملی ، هوږه پیاز یا بل بدبوی لرونکي شی وخوري ،
خوله پاکه نکړي مسجد ته تلل یي مکروه دي .

(پورتنی ماخذ)

مسئله : که چا دجامو ، بغل یانور ځان بد بوی ولاړیده اونوروته یي
ضرر رسیده له مسجد څخه منع کیدلای شي .

(پورتنی ماخذ)

مسئله : که دچا وصیت کړی وو چی داپیسی په فلانی مسجد ولګولی
غوره دادی چی هلته ولګول شی خو که یي په بل مسجد ولګوی هم
جواز لري .

(فتاوی عبدالحی ج۳ص۱۰۳دسراجیه په حواله)

مسئله : که څوك همیشنی سود خوروي که مسجد ودان کړی هلته
لمونځ کول مکروه دي .

(فتاوی عبدالحی ج۱ص۷۳)

مسئله : دکفارو شتمنی که چا په مکر، چل اوغلاترلاسه کړه مسجد
ورباندي جوړول جواز نلري ..

مسئله : دروافضو په مسجد کښی لمونځ کول صحیح دي .

(فتاوی عبدالحی ج۱ص۷۲)

مسئله : په جوړشوی مسجد کښی سامان ایښودل یا پکښی هستوګنه
کول جائز نه دي .

(فتاوی عبدالحی ۱-۲۹۵)

مسئله : که امام په مسجد کښی وو له مسجد څخه بهر په بام یا څنګ
ته چی له مسجد سره لاره ونه لری اقتداء صحیح ده .

(مبسوط للسرخی ج۱ص۲۱۰)

مسئله : له خپله شخصي مال څخه دمسجد په دیوالونو سره زر وهل یا ملمع «ځلند» کول روا دي خو غوره نه دي . (عالمگیری ج ۲ ص ۲۱۴) .

مسئله : که له وقف شوی کور څخه مسجد ته لاره وه ، امام ورباندي ننوتلای شي . (عالمگیری ۲۱۴-۲) .

مسئله : مؤذن ته جواز شته چي دمسجد په موقوفه خونه کښي هستوگنه وکړي . (تیرشوی ماخذ) .

مسئله : که دمسجد ترڅنگ دامام خپل یا کرایي کور وو غوښتل يې دمسجد په دیوال کښی لاره پرانیزی ورته جواز نلري . (تیرشوی ماخذ) .

مسئله : په مسجد کښی تدریس روا دي که څه هم دمسجد دری اوشطرنجی استعمال کړي . (پورتنی ماخذ) .

مسئله : دیوه مسجد اهل دکومی شرعی مجبوری له مخی مسجد بیل کړی دیوال یي پکښی جوړ کړ ، دوه امامان یي وټاکل خو مؤذن یي یو وو جواز لری خو غوره داده چی مؤذنان هم دوه وي خو کلیوالو لپاره دمسجد دوه ځایه کول بد دي . (تیر ماخذ ۲۱۵-۲) .

مسئله : دجماعت دزیاتوالی په نیت کلیوال اختیار لری چی دوه مسجدونه سره یو کړي . (تیر ماخذ) .

مسئله : دذکر اوتدریس لپاره دوه مسجدونه یو کول جائز نه دي . (عالمگیری ج۲ص۲۱۵) .

مسئله : په مسجد کښی دبادوتل نشته ادب دادی چی همداسی وخت بهر ووزي . (تیر ماخذ) .

مسئله : بي اودسه مسجد ته ننوتل روا دي . (عالمگیری ج ۲ ص ۲۱۵) .

مسئله : دمحراب دننه دمسجد حکم لري . (پورتنی ماخذ) .



مسئله : که څوك په یخنیځ کښي راغلل ، دهلاکت ویره یي وه داسي یي محسوس کړه چي که اور بل نکړی دځان یا دکوم اندام خطر یي شته بیا دمسجد لرگی دگرمی لپاره لگولای شي .

مسئله : دعامی فتنې په خطره کښی غله اودکور نور لوازم په مسجد کښی ساتلای شي . (تیر ماخذ) .

مسئله : په مسجد کښی کښیناستل ، تعویذ خرڅول چی دقران کریم، تورات یا انجیل ایاتونه لیکی جواز نلري (تیرشوی ماخذ) .

مسئله : دگرمی له امله دمسجد په بام جماعت کول مکروه دي خوکه دلاندی ځای نه وو په بام اقتدا کولای شي . (پورتنی ماخذ) .

مسئله : دوقف له شتمنی هغه مهال داذان لپاره منارجوړول صحیح دي چی ضرور وي مثلاً کلیوال له ټیټ ځای څخه داذان غږ نه اوری که ضرور نه وو جواز نلري . (پورتنی ماخذ) .

مسئله : که دمسجد لپاره پیسی ټولی شوی وي چا په دي هیله مصرف کړی چی بیرته به یي ورکړم وریي نه کړی یو ملگری دي خبر کړی چی بیا یي ورکړی که یي په پته خو له مصرف کړی قاضی دي خبر کړی اوکه هغه هم نه وو نوبیا دي په خپله پری کړی ( فیما بینه وبین الله ) غاړي یي خلاصیږي . (بحر الرائق ۲۵۱-۵) .

مسئله : دکلیوال لپاره هغه وخت مسجد ورانول اوکلك جوړول جواز لری چی دمسجد لومړنی جوړوونکی یي کلیوال وي اوکه نه وو ، جواز نلري . (بحر جلد ۵ ص ۲۵۱) .

مسئله : مسجد ته وقف شوی شیان په مدرسه کښی لگول جواز نلري . (فتاوی عبدالحی ج ۲ ص ۱۳۲) .

**مسئله** : که دمسجد دجوړوونکي او کليوالو تر مينځ دامام اومؤذن په
هکله اختلاف پيداشو که دکليوالو خوښ کړی شوی امام اومؤذن بهتر
وو هغه دي منتخب کړای شي ځکه کليوالو ته دامام او مؤذن ګټه او
زيان رسيږي . (کبيری ۵۷).

**مسئله** : دمسجد لپاره دتيلو او فرشونو (دری ، شطرنجی) داخستلو
ثواب سره برابر دي خو چی کوم ته دمسجد اړتيا زياته وي دهغه په
اخستلو ثواب زيات دي . (تير ماخذ).

**مسئله** : که په خپل مسجد کښی جماعت تير شوی وو دجماعت په هيله
بل مسجد ته تلل دانيك كار دي خو مسجد حرام ، مسجد نبوی
اومسجد اقصی په خپله غوره دي ورڅخه تلل غوره نه دي .
(کبيری ۵۲۹).

**مسئله** : که بل مسجدته دجماعت لپاره څوك لاړ شی هلته هم جماعت
تير شوی وو بياخپل مسجد افضل دي .

**مسئله** : که مؤذن اذان وکړ بل څوك جماعت ته نه راغلل ، مؤذن دي
دجماعت لپاره بل مسجد ته نه ځی يوازی دي همدلته لمونځ وکړي .
(کبيری).

**مسئله** : که اذان وشو ، امام نه راغی يو کليوال دي امامت وکړي بل
مسجد ته دي خلگ نه ځي . (کبيری).

**مسئله** : که تکبير اولی (لومړی تکبير) يا يو دوه رکعته تير وو اوپه بل
مسجد کښی دجماعت دنيولو هيله وه ، تلل جواز نلری ، که په خپل
مسجد کښی دجماعت يوه برخه هم ونيسی بهتر دي . (کبيری).



**مسئله** : که دچا دخپل کلی دمسجد امام زانی يا سود خور وو ، خپل
مسجد پريښودلای او بل ته تری تلای شی که همداسی بل ناخوښه فعل
ياعادت يي امام درلود تلای شي . (کبيری ۵۲۹).

**مسئله** : له هرډول بدبويي څخه دمسجد ساتل واجب دي . (کبيری).

**مسئله** : که غير مقلدو خلگو دفساد ، دمخنيوی په خاطر بل مسجد
ودان کړ دهغه رڼګول صحيح نه دي ځکه هغه دضرار دمسجد حکم نلري
خو که مقصد ورڅخه بيلولای اوفساد وو نو هغه دمسجد ضرار حکم
لري . (فتاوی عبدالحی ج۲ ص۱۵۹).

**مسئله** : که چا نشي شيان وڅکول ، نشه نه وو اومسجد ته لاړ دامنع دي
له مسجد څخه ايستل يي صحيح دي . (فتاوی عبدالحی ج۲ ص۱۷۲).

**مسئله** : له سفر څخه دراتلو په وخت کښی دي مسافر مسجد ته ځی دوه
رکعته لمونځ دي کوي . (کبيری ۴۱۰).

**مسئله** : دمسجد بانی دترميم ، تعمير ، دری ، گروپونو ، اذان،اقامت
او امامت تر نورو حقدار دي بيا يي اولاد اوبيا يي کورنی . (کبيری ۵۷۱).

**مسئله** : بانی همداحق له صلاحيت سره لری که يی اهليت نه درلود
حقدار نه دي . (عالمگيری ۷۰-۱)

**مسئله** : دمسجد په ديوال اوبام تميم جائز دي خو بي ادبي ده . (عالمگيری ج ۳ ص ۱۳۴)

**مسئله** : زکوة مال په مسجد کښی لگول صحيح نه دي . (عالمگيری ج ۳ ص ۲۴۳)

**مسئله** : دمسجد هيڅ برخه دي نه دعايد ذريعه جوړيږی اونه
دهستوګنی (ردالمحتار ۵۱۲-۳)

مسئله : که څوك په مزدوری لیکنه کوی ، په مسجد کښی ورته مکروه ده ،دځان لپاره یا پرته له مزدوری جواز لري . (عالمگیری ۷۰-۱ ).

مسئله :دمسجد په دیوالونو او محراب باندی دقرآنی ایتونو لیکل تنزیهی مکروه دي ځکه دمسجد ددیوال دلویدلو په صورت کښی داهانت احتمال وي . (عالمگیری ۷۰-۱ ).

همداشان دمسجد په دروازه دکاغذ دټوټو لیکل یا سرښول مکروه دي . (پورتنی ماخذ)

مسئله :دمسجد دسامان دایښودلو لپاره دمسجد ترڅنگ حجره جوړول جائز دي . (عالمگیری ۷۰-۱ ).

مسئله :کوم ښوونکی که په مزدوری باندي ماشومانو ته زده کړې کوي دتودوخی یا بلي مجبوري له امله که په مسجد کښی کښینی مکروه نه ده (عالمگیري) خو ځینی خلگ یي دکاتب په څیر کښیناستل مکروه گڼي . (عالمگیری ).

مسئله :په مسجد کښی له لمونځ کولو سره سره دنورو دینی کارونو لپاره کښیناستل جائز دي خو له همدي امله که څه شی ورك شی دتاوان ضامن دي . (عالمگیری ).

مسئله :په مسجد کښی یوځای ځان ته ځانگړی کول مکروه دي . (رد المحتار ۲۲۰-۱ ).

مسئله :که په مسجد کښی کوم لمونځ کوونکی کښیناست پرته له شرعی ضرورته یي ولاړول جائز نه دي خو که عامولمونځ کوونکو ته ورڅخه تکلیف وو بیا یي ولاړول روا دي . (عالمگیري ).

مسئله :نن سبا له پاکو بوټونو سره مسجد ته ننوتل هم بي ادبي ده . (عالمگیری)



مسئله :په مسجد کښي دنیائې خبري کول نیکې داسي خوري لکه اور چي لرگي خوري . (کشاف ۱-۳۸۷ ).

مسئله :ددنیادخبرو لپاره په مسجد کښی کښیناستل جائز نه دي . (عالمگیری ۳۱۵-۲ ).

مسئله :څوك چی له مسجد څخه په غلا کولو روږد وي ، هغه ته سزا ورکول ضروري ده. اوترهغه دي بندي کړای شي ترڅو توبه وباسي . (عالمگیری ۱۰۷-۳ ).

## په مسجد کښي دجنازې دلمانځه لپاره ځای بیلول

مسئله:کومه برخه چی له اوله لامسجد وي هلته دوهم جماعت اودجنازې لمونځ مکروه دي که یي وروسته یوه برخه اضافه کړي ، که هغه دمسجد په نیت اضافه شوی وي دمسجد احکام وربانده جاری کیږی یعنی دناولی سړی ورتگ منع اودوهم جماعت مکروه دي ، که دمسجد په نیت نه وي اضافه شوي بلکه ددي لپاره اضافه شوی وي چی هلته کښینی ، ماشومان زده کړه وکړی یا دجماعت زیات خلگ هلته ودریږی دابرخه مسجد نه دي دمسجد احکام وربانده نه جاری کیږی هلته ناولی کسان ورتلای شی دوهم جماعت کولای شی ، دجنازې لمونځ پکښی کیدلای شی ددي برخی مقصد له وقف کوونکی یابانی څخه معلومیدلای شي . (فتاوی محمودیه ۲-۴۷۱ ).

## په مسجد کښې د قبرونو داخلول

مسئله :دقبرونو ځمکه مملوك وي یاوقف ، قبرونه زاړه وي یا نوی چې مړی بالکل خاوری شوي دی که ځمکه دچاملکیت وي قبرونه زاړه وي دمالك په اجازه هغه په مسجد کښی شاملیدلای شی که قبرونه دومره زاړه نه وو څوچې مړی خاوری شوی وي بیا یي په مسجد کښی داخلول صحیح نه دي ځکه دقبرونو او مړیو سپکاوی وي اودمړی لورته سجده کیږی ، که ځمکه وقف وي اوقبرونه خورا زاړه نه وي بیا یي هم داخلول ناروا دي که قبرونه خورا زاړه وي مړی خاوری شوی وي بیا دي هم هلته مړی نه خښیږی خوپه مسجد کښی شاملیدلای شي .

( فتاوی محمودیه۱-۴۸۹ ،رحیمیه۸۴-۲ ).

مسئله :کومه ځمکه چې پکښی قبرونه وي هغه دچا ملکیت وي دمالك په اجازه هغه هواریدلای اوځمکه په مسجد کښی شاملیدلای شی اودقبرونو تیږی هم دمالك په اجازه دمسجد په ودانۍ کښی بیا استعمالیدلای شی خو داپه دي شرط چې قبرونه زاړه او مړی خاوری شوی وي ، که هغه ځمکه دقبرونو لپاره وقف وي نو بیا یي په مسجد کښی شاملول صحیح نه دي .

( فتاوی محمودیه ج۱۰ ص ۱۷۳ ).

مسئله :دمسجد په انګړ کښی مسجد ته په وقف شوی ځمکه کښی دمړی خښول صحیح نه دي ، ځکه هغه ځمکه دمسجد لپاره وقف شوی ده دمسجد له ښیګنی پرته دبل څه تصرف پکښی جواز نلري .

( فتاوی رحیمیه ج٦ ص ۹۳ ،کفایت المفتی ۳-۱۰۸ ).



## دمسجد په پیسو دهدیري لپاره ځمکه اخستل

**پوښتنه** : که څوك دمسجد په پیسو مسجد ته نژدي ځمکه دهدیری لپاره واخلی جواز نلري ؟

**ځواب** : داپیسې خو مسلمانانو دمسجد لپاره مرسته کړی ده چاته په هغو روپو دهدیری لپاره دځمکی اخستلوحق نشته .

( فتاوی محمودیه ج۱۲ ص ۲۵۷ ).

## دمسجد په چاپیریال کښی تر مسجد لوړ کورونه جوړول

**پوښتنه** : دمسجد دقبلی لورته ترمسجد لوړ کور جوړیدلاي شي ؟

**ځواب** : دمسجدخو اوشا کښی ترمسجد لوړی ودانۍ جوړیدلای شي ، دادمسجدبی احترامی نه ده .

( فتاوی رحیمیه ج۱۰ ص ۲۴۱ ).

## دمسجد په احاطه کښي دهديري په ځمکه دامام لپاره خونه جوړول

**پوښتنه** : دمسجد په انګړ کښی زړه هدیره ده نژدي دیرش کاله څوك پکښی خښ شوی نه دي ، که دهمدي هدیری په ځمکه کښی دمسجد دامام لپاره خونه جوړه شی جواز لري ؟

**ځواب** : دمسجد په انګړ کښی دهدیری ټوټه وقف ده دچاملکیت نه ده ،هلته دامام لپاره خونه ، دبولوځای ، داودس کولو دځای جوړول جواز نلری ، دهغوی جوړوونکی اوهستوګنی سخت په ګناه اخته کیږي .

( فتاوی رحیمیه ص ۲۴۸ ج۱۰.

## زړه هدیره په مسجد بدلول

مسئله :که هغه ځمکه مملوکه وي ، هدیره زړه وي ، مړی خاوري شوي وي ، قبرونه هموارول هلته مسجد ، مدرسه ، دوکانونه جوړول جائز دي.

کله چې مړی خاوري شي دقبر احکام بدلیږي خو که مړی خاوره شوی نه وي هلته قبرهموارول مسجد یابل شی جوړول جائز نه دي په داسې حال کښې دقبر احترام ضرور دي او له قبر سره لمونځ کول جواز نلري ، له هغه سره نژدې له لمونځ کولو سره احتیاط په کار دي په ځینو صورتونو کښې کراهت زیات وي .

که هغه زړه هدیره وقف وي ،مړی پکښې نه خښیږي ، بل هدیره وي دااحتمال وي چې خلګ به یې قبضه کړي یا بیکار پاته کیږي اودمسجد اړتیا وي که دمسلمانانو وربانډې مشوره راغله مسجد جوړول وربانډې جواز لري .

(فتاوی محمودیه ۱۹۸-۲ دتبیین الحقایق ۲۴۶ ج ۱ په حواله ).

مسئله :که دلمونځ کوونکی دقبلې لورته قبر نه وو لمونځ کول یې پرته له کراهته جائز دي .

(فتاوی دارالعلوم ۱۴۹-۴ ددرمختار ۳۵۳-۱ په حواله ).

## دمسجدو راسته فرشونه په قبر کښې اینبودل

په قبر کښې تر مړی لاندې ، فرش غوړول مکروه دي ، که مسجد ته نوی فرشونه ( دری ، شطرنجی ) راوړی ، زاړه خراب شوي وي ، داصل مالک اختیار دي چې څه یې کوي ، که دمسجد په پیسو اخستل شوي وو دمسجد په ګټه دي استعمال کړي یا دي خرڅ کړي پیسې دي په مسجد ولګوي.



(فتاوی محمودیه ۱۴-۲۸۵ ).

## دهدیرې دخالي ځمکې عاید په مسجد لګول

پوښتنه : که دهدیرې ځمکه ډیره وه او خالي ځمکه یې چا وکرله آیا حاصل یې مسجد ته ورکولای شي؟

ځواب : که هغه وخت چې داځمکه هدیرې ته وقف کیدله دااجازه ورکړل شوې وه چې دزیاتې ځمکې حاصل دي مسجد ته ورکړل شي اجازه ده که یې داسې اجازه نه وه ورکړې بیا دي حاصل دهدیرې په ښیګنو مصرف کړي که هدیرې ورته اړتیا نه درلوده ، بلکه هدیره هم نه وه چې څه کمبود ولرې بیا دي په مشوره مسجد ته ورکړي خوداخیال ساتل په کار دي چې دهدیرې دازیاته ځمکه په کرلو سره دچاقبضه او ملکیت نشي .

(فتاوی محمودیه ج ۱۸ ص ۲۱۲ ).

## په زاړه مسجد کښې دمړي خښول

مسئله :که یو مسجد اوس وران شوی وو ، لمونځ پکښې نه کیده . بیا هم دهغه مسجد والي ختم نه دي. نو مړی پکښې خښول جواز نلري ځکه داکار دبانی اووقف کوونکي دمقصد خلاف اودمسجدادب ضد کار دي خو که څوك خبر نه وو په مسجد کښې یې مړی خښ کړ دهغه مړی بیرته کښل نشته ځکه دمړی توهین کیږي ،په مسجد کښې اوس لمونځ نه کیږي نو دخونډي ساتلو دپاره دي دبل مړی خښولوته اجازه نه ورکوله کیږي که لمونځ پکښې کیږي ، قبر دي هموار کړي ، لمونځ پکښې جواز لري ،که یې ځمکه نه تنګوله څه موده دي پاته وي ترڅو خاوری شي خو دلمانځه په وخت کښې چې دمخ لورته نه وي .

(فتاوی محمودیه ۱۷۲-۶ ددرمختار ۲۰۲-۱ په حواله ).

مسئله :که دمسجد قبلې لورته خو ددیوال بل طرف ته قبر وو ، لمونځ مکروه نه دي ځکه دیوال حایل دي .

(فتاوی دارالعلوم ۴-۱۰۷ دغنیه ۳۵۰ په حواله ).

## دمسجددننه مړی خښول

مسئله :چې یو ځلې یو ځای مسجد وبلل شو ، بیا په هغه کښې هیڅ ډول تصرف جواز نلري داچې دجنازې لمونځ دي له مسجد څخه بهر کیږي نو هلته به دمړي خښول څرنګه جواز ولري په هیڅ صورت دمسجد دننه دمړي خښول جواز نلري .

(نظام الفتاوی ۴-۳۰۴ ،شامي ۳۷۲-۱ په حواله ).

## دالهي دربار اداب

تراوسه چې دخدای ﷻ دکور (مسجد) په هکله څه وویل شول ، داخبره څرګنده شوه چې ددربار خصوصیات بالکل نور دي ، دځانګړتیا نښې يي خورا لوړې دي ،مسجد دخدای ﷻ دکور په صفت لوړ حیثیت اوشان لري له همدې امله يي اداب هم خورا درانه او لوړ دي اودهغوی په ځای کول هم خورا ضروري دي .

ددنیا دمعمولي دربارونو حال تاسې ته معلوم دي چې هر یو ځانته ، ځانته اداب او مقررات لري هرڅوک چې هلته ورځي هغه به ترسره کوي دپاچا اودهغه دامیرانو داجلاس قوانین چې یوځل تثبیت شي ،تخلف ورڅخه دجزائیت وي ددنیاي امیرانو دجلسو اداب چې تل مو ورسره سروکار وي په نظر کښې ولرو اوبیا فکر وکړو چې دهغه دربار به څه حال وي چې دانسانانو دربار نه دي بلکې هغه دانسانانو دخالق اومالك کور دي هغه داحکم الحاکمین مخامخ دربار دي اوهغه زموږ دسجدې کولو لپاره ځانګړې شوی دي .



په قران کریم کښې ددي کور یادونه په غټ عنوان شوی ده دلوړوالي او سپېڅلتیا ستاینه يي شوی ده دپاك ساتلو په وار وار تاکیدیي شوی دي دهغه دادابو دساتلو لور ته اشاري شوی دي رسول الله ﷺ يي یو یو بیان په خورا تفصیل سره کړی دي دهغه داحکامو په خلاف ورزی يي وعید ویلی دي .

## په مسجد کښې حضور ، دالهي رحمت ذریعه ده

رسول الله ﷺ وفرمایل : اوه کسه به داخرت په ورځ دهغه (رحمت) په سیوری کښې چې بل سیوری به نه وي ، ناست وي په هغوی کښې به یو شخص هغه څوك وي چې له مسجد څخه ووزی تربیا راتلو يي دزړه میلان دمسجد لورته وي)) .

په یوه حدیث شریف کښې راځي (( څوك چې مسجد ته ننوت ، هغه دالله ﷻ په پناه (ساتنه) کښې وي ، الله ﷻ يي له زیان اونقصان څخه ساتي ) .

په یوه روایت کښې راځي رسول الله ﷺ وفرمایل ( څوك چې ونیځ له مسجد سره مینه لري اودهغه خدمت کوي دهغه په مؤمن والي بشارت ورکړی)) مشکوة باب المساجد)) .

په حدیث کښې د(( تعاهد)) لفظ راغلی دي چې معنی يي دمسجد ساتنه اوخبراخستل دهغه ساتنه ترمیم ، پاکول ، لمونځ کول ، په عبادت پکښې مشغولیدل ، ذکر کول په دینې زده کړه مشغول کیدل دي .

(فتاوی عبدالحي ج ۳ ص ۴۱ ).

رسول الله ﷺ دلمونځ کوونکو په هکله وفرمایل :دوی دخدای ﷻ په رحمت کښې غوټه وهونکی دي )) .

په بل حدیث کښې راځي چې (هغوی في سبیل الله مجاهدین دي ) .

(کنز العمال ۱۱۰-۳).

رسول الله ﷺ هغو خلگو ته چې په تياره کښې مسجد ته ځي په بشپړ نور سره زيرى ورکړ «بشر المشائين فى الظلم الى المساجد بالنور التام يوم القيامة»

رواه الترمذي

## مسجد ته نژديوالى

ددي ستر کور داحال دي چې گاونډى يي هم له فيض او برکت څخه بي برخې نه دي ، د رحمت نزول چې وشي ، په هغه هم توېږى او له هغه څخه به يي درجه څومره لوړېږى نبوى ارشاد دي «فضل الدار القريبة من المسجد على كفضل الغازى على القاعد» کنز العمال ج ۴ ص ۱۳۸ ).

( کوم کور چې مسجد ته نژدى دي . دهغه فضيلت په ليرې کور باندې دومره دي لکه دمجاهد فضيلت چې په ناست شخص دي )..

گورى ورسره دگاونډى مرتبه لوړېږى ، ورته نژدى او خو اوشاځايونه په نورو څومره مخته دي او ولى به نه وي چيرى چې دالهى رحمت باران وي ، دالهى انوارو دځليدلو ځاى وي او هغه ددنيا جنت بلل کيږى ، په يقينى توگه به يي گاونډيانو ته يو ډول نه يو ډول گټه رسيږي .

له دي سره سره دقدرت داانصاف گورى چې له مسجد څخه لرى کسان يي هم ندي بي برخې کړى هغوى ته يي هم هغسى برخه ورکړى ده ، د رسول الله ﷺ ارشاد دي «ان اعظم الناس اجرا فى الصلاة ابعدهم اليها ممشى فابعدهم والذى ينتظر الصلاة حتى يصليها مع الامام اعظم اجرا من الذى يصليها ثم ينام»

(مسلم ) ۲۳۰ ).

( ډير اجر هغه چاته دي چې له ليرې راځي ، په مسجد کښې منتظر وي ترڅو په جماعت لمونځ وکړي هم دي ترهغه چې يوازې لمونځ وکړي ، بيده شي غوره دي ).



په دي حديث شريف کښې دهغو خلگو لپاره دتسلې ځاى دي چې له مسجد څخه ليرى دي او دمسجد دنژديوالى په بدل کښې يي په ليروالى کښې ثواب ښودلى دي ددي ثواب دکثرت او زياتوالى داحال دي چې هيڅ قدم يي له اجر څخه خالى نه دي ) .

## مسجد ته دراتلو ثواب

دحضرت جابر ابن عبدالله ؓ بيان دي ( زموږ کور له نبوى مسجد څخه ليرى وو ما اراده وکړه چې څومره ممکن وي نبوى مسجد ته نژدي هستوگنى شم خو رسول الله ﷺ له دي ارادي څخه منع کړم او ويي فرمايل ( ان لكم فى كل خطوة درجة ) ( په رښتيا تاسو ته په هر قدم يوه درجه ده .) (مسلم باب کثرت الخطآ الى المساجد ۲۳۵-۱).

دجابر ؓ بيان دي دنبوى مسجد خواکښې خالى ځاى وو بنو سلمة چې له مسجد څخه ليرى هستوگن وو غوښتل يي نبوي مسجد ته نژدي واړوى او پخوانى ځاى پريږدى .

داخبره رسول الله ﷺ ته ورسيدله ، له هغوى څخه يي په دي هکله پوښتنه وکړه هغوى ورته مثبت ځواب ورکړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

( ما بنى سلمة ديارکم تكتب اثارکم ) ( تير ماخذ) .

اي بنى سلمة ! خپل ځايونه مه پريږدي ستاسو پلونه ( دپښو نښى ) ليکل کيږى له دي حديثونو څخه ښکارى چې رسول الله ﷺ تر غيبول ترڅو چې چيرى وي هلته واوسى اوله ليرى والى څخه ونه ويريږى ، داليرى والى هم ثواب لرى داچې مسجد ته په تلو راتلو په هر قدم نيکى ليکله کيږى نو څومره چې ليرى وي هغومره يي ثواب زيات وي څوك چې اودس وکړى مسجد ته روان شي گواکى لمونځ کوى ، تردي زيات ثواب چيرى دي .

رسول الله ﷺ وفرمایل: « الا بعد فالابعد من المسجد اعظم اجرا »
(ابوداؤد).

(له مسجد څخه چې څومره لیري وی او راځي هغومره زیات ثواب مومي).

یو ځل رسول الله ﷺ وفرمایل: « څوك چې پاك وي اودس وكړي دفریضې د اداء لپاره مسجد ته ځي ددي سړی یو قدم ګناه پاکوي اوبل يي درجه لوړوي » (مسلم ص ۲۳۵ ج ۱).

## دمسجد ته دتللو مسنونه طریقه

له کورڅخه چې روانيږی اودس دي وکړی ، داسنت طریقه ده پیغمبر ﷺ چې دجماعت دلمانځه دثواب دزیاتوالی بیان کوی ، داپکښې څرګند دي چې اودس وکړی اوبیا په خالص نیت سره مسجد ته روان شی له ادابو سره لاړ شی نو ددرجی دلوړوالی اودګناه دمعافی بشارت شوی دي. (بخاری ج۱ ص ۷۹).

اړتیا هم داده چې الهی دربار ته له پوره تیاری سره لاړشی ، جامی پاکی ، بدن پاك ، اودس کړی اوهلته په مناجاتو دعا خبری اظهار وکړی.

دروانیدلو په وخت ځان ته وګوری چې یوه عظیم الشان دربار ته روان یم ، هغه دربار که ددنیا جنت وبلل شی مبالغه نه ده پورته چې حدیث تیر شو پکښې دادربارونه دجنت باغونه بلل شوی دي له همدي امله له ټول حکمی او حقیقی نجاست څخه به پاك ورته حاضريږي.

په ظاهری جوړښت کی به هم خورا سمبال وي هسی چې دشریعت غوښتنه ده له خپله وسه سره سم جامی پاکی که توان وو عطر ووهل شی ترڅو دخولو او نورو بوی ورك شی اوداذیت سبب ونه ګرځی ، ربانی ارشاد دي (یا بنی آدم خذوا زینتکم عند کل مسجد » (اعراف ۳).

ژباړه: ای دادم اولاده: مسجد ته دوتلو په مهال ښکلا خپله کړی)



یعنی داچې دمناجات او زاریو لپاره الهی دربار ته راځی پاکی جامی. واغوندی چې په شرعی حد کښی وي چې داحکم الحاکمین دربارته راځی ظاهری اداب پوره مراعات کړی ترڅو دکومی بي ادبي شایبه پکښی نه وي صحیح ده چې دزړه کومی ته وکتل شی خو دزړه دصفای اثر په جسم هم باید ښکاره وي:

په دي کښی نشته چې له وران زړه سره ظاهری ښکلا اوسمبالښت مطلوب نه دي خو په اوسنی زمانه کښی له دین سره دزړه له مینی سره دلباس بی پروایی کوم خوښ کار نه دي له دي ایت څخه دبدن ظاهری سمبالتیاهم معلومیږی چې هغه دمسجد داحترام لپاره یوه په زړه پوری طریقه ده دابن کثیر په تفسیر کښی دي چې: له دي ایت څخه داخبره جوړیږی چې دلمانځه په وخت کښی ظاهری حالت خورا سمبال اوښکلی وي. (ابن کثیر ۲۱۰-۱۲).

## مسجد ته په وقار اوډاډ سره راتلل

مسجد ته په ورتلو دافکر کول چې دستر عبادت لپاره ستر کور ته روان یم ، له همدي امله به یي په تګ کښی وقار او اعتدال ښکاره وي داسی رفتار اوتګ به نه کوی چې وربانډی سپك ښکاره شی یا په عام نظر کښی دخندا وړ وي.

داخیال ساتل ضروری دي چې دلمانځه اراده کول دلمانځه حکم لری نو په لاره دي له لهو ، عبثیاتو ، خندا او ناروا شیانو ځان ساتی هغه څه چې دلمانځه مناسب نه دي له هغوی پرهیز کول ورته ضروری دي په زړه کښی دمینی او ویری امید او خشیت حالت پیدا کول ، په څهره که دتواضع اثار راتلل ، داهرڅه داسی چې یوازی دالله ﷺ لپاره وي (نبوی ارشاد دي).

«اذا سمعتم الاقامة فامشوا الى الصلاة وعليكم بالسكينة والوقار ولاتسرعوا» (دباب ماادركتم فصلوا) (چې اقامت واورئ لمانځه ته په وقار سره ځئ منډې مه وهئ).

«واتوها وعليكم السكينة فما ادركتم فصلوا ومافاتكم فاتموا فان احدكم اذا كان يعمدالى الصلاة فهو فى الصلاة»

(مسلم باب استحباب اتيان الصلاة).

«لمانځه ته په وقار سره ځئ، کوم چې مو ونيو ويې کړئ چې پاتـه شو پوره يې کړئ که له تاسو کوم يوه دلمانځه اراده وکړه نو هغه په لمانځه کښې دی».

## مسجد ته پياده راتلل

مسجد ته تلل پياده دي که کوم شرعي عذر نه وو نو سپور راتلل ښه نه دي ترڅو په هر قدم کښې ورته اجر وي او وليکل شي هغه چې پورته يې يادونه وشوه درسول الله ﷺ له ارشاداتو داسې ښکاري چې مسجد ته پياده راتلل دګناهونو کفاره ده.

## مسجد ته لومړۍ ښۍ پښه دننه کول

په لاره دافکر کول ضرور دي چې خورا ستر دربار تـه ننوزم، دپخوانيو علماوو اوصوفيانو داسې پيښې زما نظر ته راځي چې هغوی بـه مسجد ته ننوتل رنګ بـه يې ليده او څهره کښې بـه يې يو بيل کيفيت ښکاره کيده.

په هر حال کله چې مسجد تـه ننوزي لومړی دي ښۍ پښه ږدي بيا چپه، خو دوتلو په وخت ددي په خلاف لومړی کيڼه اوبيا ښۍ پښه بهر شي



خوبوتونه يا بل څه پښو کول لومړی په ښۍ پښه وي چې دامسنونه طريقه ده.

انس ﷺ وايي: سنت دادي چې کله مسجد ته ننوزې لومړی ښۍ پښه دننه شي او چې بهر تړې وزې لومړی کيڼه پښه بهر کړې.

(فتح الباری ۳۵۳-۱).

صحابه وو ﷺ همداسې عمل کړی دي اودادب تقاضا هم داده چې ښۍ لورته په کيڼ لور فضيلت دي دښۍ پښې په دننه کولو سره دادعا ويله کيږي «اللهم افتح لى ابواب رحمتک» (اې الله موږ ته ستا درحمت دروازه پرانيزه).

کله چې بيا بهر وتل، کيڼه پښه بهر کړې او دادعا ويله کيږي «اللهم انى اسئلک من فضلک» (اې الله موږ له تاسو څخه ستا فضل غواړو).

مسجد تـه پـه ننوتلو کـه خلـګ وو سلام اچول کيږي او کـه څوك نـه وو داسې ويل کيږي!

«السلام علينا من ربنا وعلى عبادالله الصالحين» «داسلام دمسجدونو نظام، دديوبند دمفتي محمد ظفير الدين ليکنه».

## دالهي دربار پاک ساتل

انسان طبعا پـاکي خوښوي، هرڅوك پـوهيږي چې څومره پـاك واوسي کور يې پاك اوهر څۀ پکښې سنبال وي.

لـه همدي املـه پـه دي خبره سړی پوهيدلای شي، داالهي دربـار چې مسجد دي پاك ساتل څومره ضرور دي ځکه داهغه ځای دي چې دخدای ﷻ په نزد محترم دي اوهلته هم د هغه الله ﷻ عبادت کيږي، هلته په پاکي سره راتـول شي اندامونـه يې پريمنځلي وي چې دناولتيا، ګرد اوغبـار درباندې ننښته نه وي

# په قران کريم کښي دپاکۍ ثبوت

داخبره ضروری ده چی په پاکوالی کښی دنورو امورو په څیر اعتدال ساتل ضروری دي ایت کریم دي (( وعهدنا الی ابراهیم واسمعیل ان طهرا بیتی للطایفین والعاکفین والرکع السجود ))(بقرة ۱۲۵).

(له ابراهیم او اسماعیل څخه موعهد واخست چی زما کور دطواف کوونکو ، اعتکاف کوونکو رکوع کوونکو او سجده کوونکو لپاره پاک وساتی).

که څه هم ددي آیت شان نزول خاص دي خو داحکامو په باب کښی یي حکم عام دي مفسرین ددي آیت دتفسیر په ترڅ کښی لیکی چی دمسجد پاک ساتل ضروری دي ظاهری ، باطنی ، اعتقادی ، معنوی او په هراعتبار یي پاکی بشپړه وي نه پکښی نجاست اوبتان وي اونه پکښی عصیان اوطغیان.

داچی دخدای دکور دپاکی حکم الله ﷻ جلیل القدر انبیاوو ته کوی له همدی څخه دمسجدونو عظمت اوشان ښکاره دي اوپاک ساتل یي ضرور.

## دمسجد دپاک ساتلو فضایل

دمسجد دپاک ساتلو فضایل په حدیثونو کښی بی شمیره دي دلته به خو احادیث رانقل کړو چی ددي خبری دثبوت لپاره بس دي.

رسول الله ﷺ وفرمایل: (( عرضت علی اجور امتی حتی القذاة یخرجهاالرجل من المسجد )) (مشکوة عن الترمذی وابی داؤد ۶۹-۱).

(( راته دامت اجرونه وړاندی شول حتی هغه ذره چی څوک یي له مسجد څخه وباسی).



څوک چی په عربی پوهیږی ، ورته معلومیږی چی دقذاة په لفظ کښی څومره فصاحت اوبلاغت دي قذاه هغی خاشې ته ویل کیږی چی په سترګه کښی لویږی داچی له هغی خاشې څوک په تکلیف کیږی هرڅوک پوهیږی دهغی دژر ایستلو هڅه یي خورا ژر کوي ، ددي لفظ راوړل دي ته اشاره ده چی په مسجد کښی کمه ناپاکی داسی مضره ده لکه په سترګه کښی خاشه چی ژربايد لیری شی اوبل داچی معمولی ناپاکی هم باید په مسجد کښی نه وي.

## رسول الله ﷺ اودمسجد خدمت

درسول الله ﷺ خادم ، انس ؓ وایي (( رسول الله ﷺ ولیدل چی په مسجد کښی دقبلې لور ته چا بلغم توکړی وو خورا په تکلیف شو دناخوښی نښی یي په څهره کښی ښکاره شوی په خپله ولاړ شو په خپل مبارك لاس یي هغه پاك کړل بیا یي صحابهٔ وو ته وویل: (( خلګو !په تاسو کښی چی څوك په لمانځه ولاړ وي ګواکی له الله ﷻ سره پټی خبری کوی ، دهغه اوقبلی تر منځ دالله ﷻ رحمت اورضا ښکاره کیږی نو له همدی امله وړاندی مه توکوی که ورته مجبورشوی کیڼ لورته یي توکړی یا یي ترپښو لاندی توکانی ،بیا یي دڅادریو څنډه راواخستله ناړی یي پری پاکی کړی او سره ویي مروړه ویي ویل داسی وکړی.

(بخاری ۱-۵۸).

# په مسجد کښې نارې توکول ګناه ده

په یوه بل روایت کښې داالفاظ راغلی دي «البزاق خطیئة وکفارتها دفنها» (بخاری ۵۹-۱) (نارې توکول ګناه ده کفاره يي پټول (ترخاورو لاندي کول دي).

معنی داچې په مسجد کښې نارې توکل ګناه ده که په ناپوهی کښې چا داخطا وکړه نو ورته ودي ویل شي چې پټه يي کړه، نو وي (رح) وايي په مسجد کښې دي په هیڅ صورت نه توکی بلکې نارې توکول ګناه ده.

دقبلې دلووی احترام نسبتا زیات دي نو هغه لورته توکول زیات بد دي که داقبله دمسجد وي یا بل ځای هرځای داحترام وړ دي چیرې چې څوك لمونځ کوی هلته په لمانځه کښې دقبلې لورته نارې توکول منع دي «ان الله جمیل یحب الجمال» که چالمونځ کاوو، نارې توکول يي ضرورت شو دجامې په څنډه دي پاکی کړې ترڅو دمسجد احترام خوندي وي اوناپاکه نشی، بهر که څوك لمونځ کوی، چپ لورته یا ترپښو لاندې يي دمجبوری په حال کښې تو کوی څه حرج نشته لنډه داچې په مسجد کښې توکول مناسب نه دي.

(فتح الباری ۳۴۴-۱).



# له مسجد څخه ناپاکې لیرې کول

که په مسجد کښې نارې ولیدل شوی خاوره دي پرې واچوی که غولی پوخ وي پاك دي کړی ودي مبنل شي یا دي په جامه پاکی کړای شی، ځکه په غولی نوره ناپاکی ورباندی زیاتیږی، داخیال ساتل ضرور دي چې دناپاکی اثر پاته نشي (تیر ماخذ)

قفال په خپله فتاوا کښې لیکی: د خنبولو حکم دساده نارو ده که بلغم وي هغه نجاست دي په هیڅ حال دي په مسجد کښې نه پټوی، بهر دي باسي. (فتح الباری ۳۴۲-۱).

ددفن (خنبولو، پټولو) معنی عامه ده یعنی هغه دي پاکی شي چې په ښکاره يي کوم اثر پاته نشی، شکل يي بیخی ختم شی خوخنبول په مسجد کښې ښه نه ښکاری دابوعبیده بن الجراح ؓ په هکله روایت راغلی دي چې هغه په مسجد کښې نارې تو کړې هغه يي پاکی کړې وبی مبنلی کورته لاړ بیا ورته یا دي شوی ځراغ يي راواخست بیا يي پاکی کړي. (فتح الباری ۳۴۲-۱).

په فتح الباری کښې له ابوذر ؓ څخه روایت رانقل شوی دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل «وجدت فی مساوی اعمال امتی النخاعة تکون فی المسجد لاتدفن» (۳۴۵-۱). «دامت بداعمال می وموندل په مسجد کښې نارې توکول هم پکښې وو پاکی شوی نه وي».

له دي حدیث شریف څخه دامعلومیږی چې په مسجد کښې دناپاکی اچولو ګناه داعمالو [illegible] انه کښې ثبتیږی اودقیامت په ورځ هغه هم په حساب کښې راځو [illegible] ـر مسلمان ته ښایی په مسجد کښې داسی خاشه وانه چوی چې دنا [illegible] ـلتیا ګمان پرې کیږی که دغسلي څه ووینی ژر دي

پاك كړئ ، دامام يوه ځانګړتيا داده چې دمسجد دپاك ساتلو څارنه وكړي ،رسول الله ﷺ په خپله داڅارنه كړې ده . (فتح البارى ۳۴۶-۱).

## دمسجد دناولي كوونكي سزا

حضرت سائب بن فدارد ﷺ وايي (( يوه سړي دقوم امامت كاوو دقبلې لور ته يې ناړې تو كړې رسول الله ﷺ په خپله وليد ، ددې څه په ليدلو خورا په تكليف شو او ويې ويل داسړى دې امامت نه كوى خلګو ورته بيا امامت ورنكړ هغه درسول الله ﷺ حضور ته ورغى اوخپل اوريدلې يې ورته بيان كړې رسول الله ﷺ هغه خبرې واوريدلې او ويې وفرمايل : (( هو دا سمه ده ماهغوى منع كړل ځكه تا په مسجد كښې ناړې تو ( تُف) كړې خداى اورسول ته دې اذيت ورساوو .

(مشكوة شريف باب المساجد).

له دې پيښې څخه اندازه لګيږي چې دمسجد بې احترامي څۀ معمولي جرم نه دې داهغه لوى جرم دې چې خداى او رسول ته يې اذيت رسيږي او په دې جرم كه څوك له خپلې دنده څخه معزول شي په ځاى كار دې بلكې هغه ددې وړ دې چې ددې جرم سزا ووينى .

## درسول الله ﷺ په نظر جارو كوونكى

له يوه لورى دمسجد دناولي كولو سخته سزا پورته يا ده شوه له بلې خوا يې دپاكولو معاوضه په اخرت كښې خورا ستره وښودله شوه .

ابوهريرة ﷺ بيان كوى يوه تور پوستى شخص مسـ[illegible] جارو كاوو ،هغه وفات شو رسول الله ﷺ ته چا دهغې دمړينې خبر ور[illegible] [illegible]سول الله ﷺ چې بله ورځ هغه ونه ليد پوښتنه يې وكړه خلګو وويل هغه [illegible]فات شو رسول الله ﷺ وويل زه مو ولې خبر نكړم ؟ بيا وفرمايل قبر يې راوښياست ، رسول الله ﷺ يې قبر ته ورغى او دمغفرت دعا يې ورته وكړه راوي په دې



هكله شك ښكاره كړى چې هغه كس سړى وو كه ميرمن خو درواياتونو پلټنه ښيي چې هغه ميرمن وه او نوم يې ام محجن وه .

(فتح البارى ۳۷۱-۱).

خلګو دومره پوهيدل چې رسول الله ﷺ ديو معمولي شخص لپاره دومره تكليف وكړ خو درسول الله ﷺ په نظر دهغه حيثيت ځكه ستر وو چې دمسجد دخدمت شرف ورته حاصل وو .

## دمسجد خدمت دايمان نښه ده

له ابو سعيد خدرى ﷺ روايت كوى چې رسول الله ﷺ وفرمايل : ((كله چې مو څوك وليد چې دمسجد خدمت كوى شاهدى وركړى چې هغه مؤمن دى))

[اذا رايتم الرجل يتعاهد المسجد فا شهدوا له بالايمان] (مشكوة ۶۹-۱)

دتعاهد په ډيرو معناوو كښې يوه جارو كول دي.

عمر ﷺ به د دوشنبه او پنجشنبه په ورځو كښې دقبا مسجدته ورته يوه ورځ يې وليدل چې مسجد جارو شوى نه وو. په خپله يې دخرما دوى څانګه راواخيستى او مسجديې جارو كړ ،بيايې خلګو ته په تاكيد سره وويل چې دمسجد دعنكبوت له تارونو اونورو شيانو پاك ساتى.

يو ځلې يې وويل((دادمسجد له هرډول ناولو څخه پاك ساتى ځكه دالله ﷻ ذكر او قرانكريم پكښې تلاوت كيږي))

# دمسجد دصفاکولو بدله

په پاى کښى همدا حديث شريف چى دمسجد دخادم اجر څومره ستر پکښى ښودل شوى دى [من اخرج اذى من المسجد بنى الله له بيتا في الجنة] (ابن ماجه باب تطهير المساجد)

ژباړه: (څوك چى دمسجد څخه مضر (ناولى) توکى لرى کړى الله ﷻ به ورته په جنت کښى کور جوړ کړى)

ددى حديث په لوستو دهر مسلمان په زړه کښى دمسجد دخدمت او پاکولو جذبه پيدا کيږى چى په داسى معمولى خدمت ورته څومره ستر اجر ورکول کيږى.

ددى تفصيل پايله داده مسجد چى الهى دربار دى دهر ډول ناولتيا خش او خاشاك ناوړو بلغمو اوهر هغه شى چى په شريعت کښى ناولى ښودل شوى دى اوهر شى چى تکليف رسوى پاك ساتل ضرورى دى څوك چى داخدمت کوى الله ﷻ ورته لوى اجر ورکړى داهم ښکاره دى چى داخدمت دذلت سبب نه دى بلکه دعزت او دالله ﷻ درضا سبب دى داهغه ستر خدمت دى چى رسول الله ﷺ په خپله اولويو صحابه وو کړى دى داذيت رسولو په ډله کښى دتنا و کښى (عنکبوت) تارونه هم دى چى انسان ورڅخه طبعا په تکليف کيږى په دى هکله دعمر ؓ وينا تيره شوه چى دمسجد قبا په هکله يي ويلى وو چى له همدى تارونو يي پاك ساتى داچى بادايستل هم بدبوي لرى اواذيت دى علماوو په مسجد کښى دباد ايستل تحريمى مکروه بللى دى البته معتکف معذور دى خو ځان ساتل ورڅخه په هر حال غوره دى

په يوه حديث شريف کښى راځى چى ملائکى لمونځ کونکوته تر هغه وخته دعاکوى ترڅو بى اودسه نه شي.

(مسلم شريف مخ ۲۳٤)



# خوش بوي تيتول

يوازى داخبره نه ده چى مسجد له بدبويي اوناولو شيانو څخه ساتل ضرورى دى بلکه دتطهير اوتنظيف سره سره تطييب هم مطلوب دى ديوه حديث يوه ټوټه ده:

[اتخذوا على ابوابها المطاهر وجمروهافي الجُمع] (ابن ماجه ۵۵-۱)

ژباړه: (ددوى (مسجدونو) په دروازو کښى داودس کولو ځايونه جوړ کړى اودجمعى په ورځو کښى يي دننه خوشبوي ولګوى)

دادرسول الله ﷺ امر دى چى په مسجدونو کښى داودس ځايونه جوړ اوخوشبوى ولګوى عمر ؓ به دهرى جمعى په ورځ غرمه دمسجد دننه خوشبوى تيتوله ورسره يي داامر وکړ چى دهر ښار په مسجدونو کښى دى دجمعى په ورځى په غرمه خوشبوى لګيږى.

حضرت عائشى رضي الله عنها په يوه روايت شوى حديث کښى راځى چى رسول الله ﷺ وفرمايل:

((مسجدونه جوړ کړى هغه پاك او معطر وساتى))

له دى حديثو څخه څرګنديږى چى په مسجدونو کښى خوشبويي ولګوى اودجمعى په ورځ ورباندى زيات اهتمام وکړي.

(په اسلام کښى دمسجدونو نظام له ۲۱۱ تر ۲۲۱ مخه پورى)

## په برس باندې مسجد پاکول

**پوښتنه** : که مسجد دجارو په ځای په هغه برس پاك شي چې له ویښتانو څخه جوړ شوی وی پروا لری؟

**ځواب** : که برس دخنزیر له ویښتانو څخه جوړ شوی وی هغه ناپاکه دی اومسجد ته دننه کول یې منع دی که دخنزیر څخه پرته دبل کوم حیوان له ویښتانو څخه جوړ شوی وو نوناپاکه نه دی او مسجد ته دننه کول یې جواز لری که پکښې اشتباه وه پرې دې ږدی .

(فتاوی محمودیه ۵۰۵-۱ دشامی ۱-۲۸۲ په حواله)

**مسئله** :که دبی ستری بدی نه وه میرمن کولای شی دمسجد دپاکولو نیکمرغې ترلاسه کړي . (فتاوی رحیمیه ۱۱۲-۲)

دقیامت په ورځ چې الهی دیدار پکښې ستر نعمت دی هلته چې انسانان سره راټولیږی چاچې په پابندی سره په مسجد کښې دجماعت لمونځ کړی وی ځانګړی ځای به لري . (زاد المعاد ۱۳-۱)

## وقف اوتولیت

که مسجد ته کومه ځمکه یا بل څه وقف کونکی ملکیت بالکل پکښې ختمیږی نو دوقف یو شرط دادی چې لاره به یې دوقف کونکی له ملکیت څخه بیلیږی ترڅو خلګوته عامه اجازه وی که تر دی اجازه وروسته یو شخص هم پکښې لمونځ وکړی هغه مسجد بلل کیږی .

دبیلوالی ګټه یې داده چې همدا ملکیت خدایي ملکیت ګرځی او په یقینی توګه مسجد ته سپارل کیږي.

خیني امامان وایي چې تروقف کولو وروسته دوقف قبضه هغه وخت ثابتیږی چې دجماعت لمونځ پکښې وشي ځکه له مسجد څخه مقصد جماعت دی په انفرادی ډول خو هر ځای لمونځ کیدلای شي لکه اذان او



اقامت څخه چې جماعت مقصد دی نو که یو سړی لمونځ وکړی خو له اذان او اقامت سره هم دقبضې لپاره کافی دی .

**تولیت**: دتولیت (سرپرستی) په مسئله کښې وقف کونکی ته دااختیار دی چې له ځانه سره یا په خپله کورنۍ کښې یې پریږدی او که یې بل چا ته سپاری خو که شرعی عذر ورته پیداشو بیا تری لری کیږی مثلا امین نه وی عاجز وی یافاسق یافاجر وی چې دشرابو عادت ولری یانوری ګناوی کوی نو په دی صورت کښې یې دمسجد له تولیت څخه لری کول ضروری دی.

کوم متولی که خائن وی قاضي یې له دندی ګوښه کولای شي که لیونی وی په خپله لیری کیږی خو که جوړ شو بیا متولی کیدلای شی.

**مسئله** :که وقف کونکی داشرط کښیښودی چې تولیت به دده په اولاد کښې وی ترڅو چې په هغې کورنۍ کښې خیانت ثابت نشی یادمعزولۍ بل عذر پیدانشی چې معزول کوی یې ورباندی رواکیږی قاضي بل څوك متولی کولای نشوای که څه عذر پیداشي بیا یې له تولیت څخه ګوښه کولای شي

**مسئله** :که دکوم وقف دتولیت لپاره څوك مشخص نه وی دهغه غوراوی دمسجد داهل حق دی هغوی دی داسی شخص غوره کړی چې په خپله یې نه غواړی څوك چې همدا دنده په خپله غواړی هغه ددندی داجر احساس نلری بلکه په فاسد نیت یې غواړی .

# دغور والي حق

مسئله :دمتولي انتخاب حق دوقف کونکي دی بیا دحاکم اوقاضي دی چې څوك غوره کوی که اسلامي حکومت نه وو هلته هم که واقف چاته ورکړی وی صحیح ده اویا دی دمحلي خلگ غوره کړی.

مسئله :که متولي دوقف کوم شی خرڅ کړی یاخه شی گرو کړی داخیانت دی هغه دی معزول کړای شی یا دي یو باوري شخص ورسره په کار کښې شریك کړي. (عالمگیری باب تصرف القیم)

مسئله :څوك چې دڅووقفونو متولي وي ، که یي په یوه کښې خیانت ثابت شو له ټولو معزول کیدلای شي. (رد المحتار ۴۲۱-۳)

مسئله :که متولي ، وقف کوونکي وي یا بل څوك خو اطمنان ورباندې پاته نشي عاجز شي یا فاسق اوفاجر شي نو دتولیت له دندي څخه یي گوښه کول ضروري دي. (درمختار درد المحتار ۴۲۱-۳ په حاشیه)

مسئله :که متولي خاین وو قاضي ته جواز شته چې هغه معزول کړي. (پورتني ماخذ)

مسئله :داسي څوك چي دتهمت لگولو په جرم کښې ورباندي حد جاري شوی وي ، بیا یي توبه کړی وي ،هغسې شخص متولي کیدل جواز لري. (تیر ماخذ)



# دمتولي اوصاف

دمتولي لپاره ددي شیانو لحاظ ساتل ضروري دي :

امانت ساتونکی ، باوري اوباتقوی به وي ، خاین ، غل اومسرف دزیات خرڅ کوونکی به نه وي عقل اوبلوغ پکښې شرط دي خو داپروا نلري بنیادي که ړوند ، سړی دي اوکه ښځه ، څکه ړوند اوښځه متولي کیدلای شي .

مسئله :متولي ته دااختیار نشته چې په خپله خوښه ، په ژوند کښې په خپل ځای بل څوك وټاکي خو که یي دکارونو اختیار ورته پریښود گولای شي .

**دمتولي دندې:** تولیت داسی څه نه دي چې لامحدود واك ولری بلکې دهغه اختیارات دشریعت په چوکاټ کښې معلوم دي ،دندی یي بیان شوی دي چې پابندي یي ضرور ده له ورسپارل شوی خدمت څخه زیات دهغه اختیار نشته . .

مسئله :وقف کوونکی ،که ورته اجوره ټاکلې وي هغه دي اخلې اوکنه داجرت په اندازه ورته اجازه شته . (فتاوی عبدالحی ص۴۰۴)

مسئله :متولي ته اجازه ده چې دضرورت په صورت کښې دمسجد دپاکولو اورڼا کولو لپاره څوك وگماری او اجوره ورته دمعمول په څیر ورکړی ، که ورته زیات ورکړی دي یي ضامن دي خوله خپله ځانه ورته زیات څه ورکولای شي .

(فتح القدیر کشوری ۸۸۰-۲)

مسئله :متولي په اضافه شوی شتمنی یعنی چي له ضروري مصرف څخه وروسته پاته کیږی نوري دعوایدو منابع اخستلای شی چی وقف

شي خو دا اخستل شوی دوقف حکم نلري یعنی دضرورت په وخت کښې
بیرته خرڅیدلای شي . (پورتني ماخذ)

مسئله :که کوم کور وقف وو . که هلته چا دمتولي له اجازې پرته
هستوګنه کوله دهغه اجوره وربانـدې لازمه ده . (تیر ماخذ ).

مسئله :دضرورت په صورت کښې متولي خپل مال په وقف کښې
لګولای شي ، په دې ډول چې که یې لرګی دمسجد په کار کښې ورکړې
وو بیرته یې اخستلای شي .
(فتح القدیر کشوری ۸۸۰-۲)

مسئله :متولي دوقف له عوایدو څخه تیل ، فرشونه یا دغولي لپاره
سمڅ اخستلای شي ، په دې شرط چې دوقف کوونکي په اجازه کښې
داخاې وي ،مثلا داسې اجازه شوي وي چې دمسجد په ښیګڼه یې
لګولای شي خو که چا دیوه معلوم کار لپاره دوقف عاید ،وقف کړی وو
هغه پرته له هغه ځایه بل ځاي استعمالیدلای نشي مثلا که دمسجد
دودانولو لپاره وو په هغه فرش ، جاې نمازونه اخستل کیدلای نشي
اونه ورڅخه دمسجد په روښانه کولو کښې ګټه اخستله کیدلای شي .
(تیر ماخذ).

مسئله :که متولي ته دوقف دلیکنې او اجازې معلومات نه وو دمخکنی
مترلي په تقلید دې کارونه کوي . (تیر ماخذ ).

مسئله :تر څوزیاته اړتیا نه وي یا له متولي سره څه شی په لاس کښې
وي ترهغه پورې به قرض نه کوی که یې دمجبوری له امله قرض اخست ،
قاضی به خبروي دهغه له اجازې پرته به قرض نه اخلي .
(فتح القدیر ۸۸۱-۲)



مسئله :که له متولي سره دوقف پیسې وي خو دوقف لپاره په خپلو
پیسو څه شی واخستل دا ورته اتفاقي جواز دي چې دوقف له خزانې
څخه خپلې پیسې بیرته واخلي. (تیر ماخذ ).

مسئله :وقف شوی کور ، متولي ګرو کولای نشي ، که یې په چاګرو کړ
اوهغه پکښې هستوګنه غوره کړه نو مروجه کرایه به ترې اخستله کیږي .
(تیر ماخذ ).

مسئله :که متولي دوقف له بودجې څخه دخپل ضرورت لپاره مصرف
وکړ ، بیا هغومره څه له خپلو پیسو دوقف په کارونو کښې خرڅې کړي
یا دوقف خزانې ته ورکړي کوم ضمان وربانـدې نشته . (تیرماخذ ).

مسئله :دوقف پیسې وي کفارو په مسلمانانو برید وکړ یا یې له بل
مصیبت سره مخامخ کړل پیسو ته اړتیا وه دامهال که مسجد ته فوري
ضرورت نه وو حاکم ته جواز شته چې دوقف پیسې دقرض په ډول
واخلي اوله هغه مصیبت څخه دمسلمانانو دخلاصون په لاره کښې یې
ولګوي . (تیرماخذ ).

مسئله :څه شي دمسجد ښیګڼې اومصلحت لپاره وقف دي له هغه څخه
متولي دمسجد په دروازه کښې ظله (دسیوري لپاره بام) وربانـدې
جوړولای شي ترڅو دباران له زیان څخه خوندي وي خو که دمسجد
دودانولو لپاره وقف وو بیا وربانـدې ظله جوړول اجازه نلري خو
ظهیرالدین وایې وقف چې دمسجد تعمیر لپاره وي ظله هم دمسجد
ښیګڼه اومصالح بلل کیږي او دالاصحیح ده اوجوړول یې جائز دي .
(تیرماخذ).

# په اوسني وخت کښې متولي

ددې بحث تر ختمولو وړاندې په دې هکله چې متوليان په شعوري يا لاشعوري توګه په دندو کښې غفلت او کوتاهي وکوي ، څو خبرې ليکم : لومړۍ خو په دې خبره ځان پوهول ضروري ده چې وقف کوونکې داوقف په څه نيت کړې دې ټول پوهيږي چې څوك دڅه لپاره څه شی وقف کوي دهغه سم سرته رسول غواړي ، دمسجد لپاره دڅه وقف کوونکي په يوه ژور فکر وقف کوي نيت يې هم دمسجد دښيګنو ښه سمبالتيا وي دالهي دربار صفايي ، دهغه روښانتيا ، لمونځ کوونکي پکښې اسوده او ارام دي ... داارادې يې نه وي چې متولي هغه هسې ضائع کړي او يا يې په خپل عيش او ارام کښې ولګوي متولي دې هم داسې نه کوي چې وقف برباد کړي له همدې امله دوقف کوونکي په ليکنو کښې دمتولي په انتخاب کښې ډير قيدونه ليکل شوي وي .

## دتوليت شرائط

کوم شرائط چې ليکل شوي وي دهغوی په پوره کولو متولي خپله وظيفه سرته رسوي ماداسې ليکنې ليدلې دي چې وقف کوونکي دوقف توليت (سرپرستی) په خپله کورنی کښې پرې ايښې دي خو ورسره ليکلې يې دي چې که زما په کورنۍ کښې ددې کار اهل سړی نه وو برطرف دې کړای شي .

دمتولي شرايط دهر وقف په ليکنه کښې بيل بيل ليکل شوي وي په هغوی کې دعقل اوبلوغ ترڅنګ ، امانتداری ، ديانتداری ، هوښيارتيا او دوقف په امورو پوهوالی ، دوقف عايد په خوند يتوب مصرف کول ، دعوايدو ذرايع ساتل ، هغوی ته وده ورکول اوپه څرګنده ليکل شوي



وي : څوك چې له دې ليکنې تخلف کوي دخدای ﷻ په لعنت دې اخته شي .

## دمتولي غفلت

له دې سره سره له وقف اودهغه له اصلاح اوترقي څخه دمتولي سترګې پټول دافسوس خبره ده اوقصدا دوقف په امورو کښې کوتاهي کول له زغم څخه وتلې خبره ده عموما داحالت هرځای لږ اوډير څرګند دي چې سره له پوره عوايدو او زياتي شتمنی بيا هم دمسجد نظم خراب وي ناپاکی وي نه درنا انتظام ، غولی کنډ کپر وي ديوال لويدلي وی ، داودس کولو په ځای کښې اوبه نه وي ، امام اومؤذن دوخت پابندي نلري ،غضب خولاداوی چې دوقف پانې له صراحت سره ،سره دامام انتخاب دمعاش له وجهي نامعقول وي ،داسې امام راولي چې په خپله په ضروری مسائلو نه پوهيږي ،دنورو درهنما يي خو ورسره خيال نه وي.

متولي پوهيږي چيمرې ، داعمالو اواخلاقو حساب به ورکوی ددندي اودکوتاهي ځواب به ورکوی دخپلی دندی دکوتاهي جرم خورا ستر دي اونيول يې هم سخت داظلم دي چې دوقف دمال نه حساب اوکتاب وي نه دمصارفو اصول او قوانين دادرك نه لګيږي چې څرنګه کار وشی چيرې مصرف شي اوچيرې نه ، که وقف داسی ځای مصرفيږي چې يوازې نوم اونښان پکښې مقصود وي اووقف ته پکښې کومه ګټه نه وي دانودخپلی دندې داحساس کمښت دي ، ځينې خولادوقف مال له خپل مال سره ګډ وي اوپه دې خيال وي چې داوقف دده لپاره دي .

خو يومؤمن انسان له دې بې انصافيو څخه ويريږي او ورته سپارل شوی خدمتونه په اخلاص اوښه توګه سرته رسوي هغه نو بيل متوليان دي.

(په اسلام کښې دمسجدونو نظام، مفتي محمد ظفير الدين لـ۲۴۶، ۲۴۷ پوري)

## وقف شوي کتابونه

په پای کښې مې يوه خبره بله رایاده شوه په ځينو مسجدونو کښې وقف شوي کتابونه هم وي دمتولي دنده ده چې هغوی وساتي خرابی ته یې ورنکړي اوداهل علم دګټې اخستلو موقع ورکړي که په وقف کښې صراحت وونو زده کوونکو ته دي هم ورکړي يو تن دي دکتابونو دحفاظت اودهغوی دراکړې ورکړې لپاره وګماري .

## چې دشريعت پابندنه وي ، دهغه متولي کيدل

پوښتنه : فاسق اوهغه څوك چې دشريعت پابند نه وي متولي کيدلای شي ؟

ځواب : مسجد له اسلامي شعايرو څخه يو دي هغه څوك داسلامي شعايرو محافظ دشريعت پابند او زړه يې دخدای ﷻ دميني او ويرې کور وي هغه يې محافظ او متولي کيدلای شي .

هغه څوك چې اسلامي شعاير نه مراعاتوی ، دشريعت پابند نه وي ، دجماعت دلمانځه پابند نه وي ،فاسق وي يعنې یا دکبيره ګناه مرتکب یاپه صغيره ګناه اصرار کوونکی وي ، په شراب څښلو روږدي وي ، سود خور وي ، هغه دخدای ﷻ دکور متولي-کيدلای نشي ، که فاسق اوبې دينه کس دخدای ﷻ دکور متولي مقرر کيږي ، دمسجد ، امام ، مؤذن او نورو لمونځ کوونکو توهين اوتحقير ورسره حتمي کيږي .

الله ﷻ فرمايي ((إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ ) سورة توبه ) .



(دالله ﷻ کور (مسجدونه ) هغه څوك ودانوی چې په الله ﷻ اوداخرت په ورځ ایمان لري ، لمونځ کوي ، زکوة ادا کوي اوپرته له الله ﷻ له چا څخه نه ويريږي ) .

ددي ايت شريف په تفسير کښې مولانا ابو الکلام ازاد رحمه الله ليکي :

(( په دي ايت کښې دا حقيقت څرګند دي چې دخدای ﷻ دعبادت ځای ، توليت متقي مسلمانانو ته رسيږي اوهغوی يې ودان ساتلای شي .

له دي څخه دا خبره معلوميږي چې فاسق اوفاجر سړی دمسجد متولي کيدلای نشي ځکه دالله ﷻ دکور اوفاسق ترمنځ کوم مناسبت نشته بلکې متضاد دي ،مسجد دخدای ﷻ دنمانځنې ځای دي اوفاسق له دي کارڅخه کرکه کوي . (ترجمان القرآن ۸۰-۲ )).

دابن تيميه په فتاوا کښې راغلي له دي سره چې نيك ، متدين اومتقي شخص پيدا اکيږي دفاسق سړی متولي کول صحيح نه دي. (۱۵۰-۱).

(( په اسلام کښې دمسجدونو نظام )) په کتاب کښې راغلي : دخدای ﷻ دکور خدمت دي هغه څوك کوي چې دخدای ﷻ دوست وي دهغه زړه دخدای ﷻ دميني او ويرې کور وي په ښکاره هم داسې وي چې خدا پرستي ورڅخه ښکاره وي. (۱۲۹)

په حديث شريف کښې دي : که ټولنه دکوم مهم کار لپاره داسې څوك وټاکي چې په ټولنه کښې ترهغه غوره داسې څوك وي چې دخدای ﷻ رضا غواړي دخدای ﷻ داحکامو زيات پابند وي نو انتخاب کوونکو له خدای ﷻ ، رسول اومسلمانانو سره خيانت کړی دی .

(ازالة الخفاء ۳۲-۲ اوفتاوی ابن تيميه ۱۰۰ ).

په درمختار ، شامي او نورو کتابونو کښې راغلي ، که په متولي کښې شرعي عذر او بدی پيدا شوه له دندې څخه دي ګوښه شي که غير امين ،

عاجز ، فاسق اوفاجر یا شراب څښل عادت شوی وو نو له تولیت څخه
یې لیرې کول ضروري دي .

(په اسلام کښې دمسجدونو نظام ۲۴۲).

اومتولي دي داسې شخص غوره کیږي چې په خپله هغه دنده نه غواړي
(تیر ماخذ).

لنډه خبره داده چې متولي دي داسې شخص وي چې ددي خبرو خیال
پکښې ساتل شوی وي دیني زده کړه ولري ، دوقف احکام ورته معلوم
وي ، امین اومتقي وي ، ژوند یې درسول الله له اسوه حسنه سره برابر
وي ،خواوس یوازې شتمنې ته کتل کیږي نور که بې علمه ، بې عمله
اوفاسق وو ، که دجماعت پابند نه وو خومتولي کیږي .
متولي په حقیقت کښې دخدای ﷻ نائب دي ،همداسې لوی منصب ته
همداسې وړ شخص لازم دي په حدیث شریف کښې راغلي چې دقیامت
په علامو کښې یوه نښه داده چې لوی ،لوی کارونه به نااهله خلګو ته
سپارل کیږي او دقومونو مشران به فاسقان وي .

(مشکوة ۴۷ فتاوی رحیمیه ج ۱۰ ص ۲۳۷ ،فتاوی محمودیه ۲۲۸-۱۸).

## دمتولي دنده

**پوښتنه** : متولي ته دکومو کارونو ترسره کول ضروري دي ؟

**ځواب** : دمسجد دوداني اوټولو ضروریاتو انتظام کول ،حساب پاک
ساتل ، په مسجد کښې بدکارونه ، نه پریښودل ، له امام اولمونځ
کوونکو څخه دتکلیفونو لیرې کول دهره یوه له خپل شان سره یې برابر
اکرام کول ،ځان لوړ او نور واړه نه بلل ، دنده نه غوښتل دشریعت په
چوکاټ کښې خپل ځان عیارول .



کوم متولي چې داصفات لرې هغه غوره دي خوکه یې کوم یونلري
دحاصلولو کوشش دي وکړي .

(فتاوی محمودیه ۱۸-۱۸۵ دبحر ۱۵۸-۲ په حواله).

**مسئله** :که دمسجد کارونه ډیر وو اوپه یوازې توګه یې ترسره کول ورته
ستونزمن وو دځان نائب مقرر کولای شي . (فتاوی ،رحیمیه ۱۵۸-۲).

## که متولي په خپله خپل نوم ثبت کړي

**پوښتنه** : دیوه مسجد متولي په څه ملحوظاتو بل څوک متولي وټاکه ،
نوی متولي پرته له دي چې خلګو ته ووایي ، په دولتي دفتر کښې یې
خپل نوم درج کړ ، پنځه کاله هم په خپله دنده پاته شو آیا هغه متولي بلل
کیږي ؟ داسې نوم ثبت کول یې شرعي دي ؟

**ځواب** : پخواني متولي په خپله خوښه بل څوک متولي ټاکلی دي دایې
غلطي کړي ده اودکلیوالو دخواتوری سبب ګرځیدلی دي مسجد هم
کومه جرګه ګی نه لري ، دنوی متولي له ثبت څخه پنځه کلونه هم تیر
شوي دي همدا یې دکار قانونیت دي خو همداسې ثبت کول او ځان نوی
متولي جوړول جواز نلري .

(محمودیه ۱۸-۱۸۴).

## غیر مسلم متولي کیدل

**پوښتنه** : که دکوم وقف اختیار مسلمان ته په ورکولو کښې دضایع
کیدلو ویره وه خو غیر مسلم هغه سم خوندي کولای شوای لکه اوس چې
په جنوبي هند کښې همداسې غیر مسلم متولیان شته اوهندوان
دمسجدونو متولیان دي ، شرعا یې حکم څرنګه دي ؟

**ځواب** : دادافسوس خبره ده چې مسلمانان دومره بې صلاحیته شي چې
دعبادت ځای تصرف یې لا دغیر مسلم په واك کښې وي هغه غیر مسلم

چې دي عبادت ځای ته هیڅ قابل نه دي خو که دوقف دتحفظ او دنظام دخوندي کولو یوازینی لاره همداوه بیا دي وزغمل شي .

(فتاوی محمودیه ۳۰۳-۱۵).

## لمونځ نه کوونکی متولی کیدل

پوښتنه : که متولی لمونځ نه کاوو ، دهغه متولی پاته کیدل جواز لري ؟

ځواب : دمتولی اصل خدمت ، دمسجد انتظام او اهتمام دي ، مهارت بې ضروري دي خو له متولی کیدلو سره تدین او امانت داری لازم دي ځوك چې لمونځ نه کوی هغه تاریك دفرایضو اوفاسق دي اودفاسق متولی کول جواز نلري .

(فتاوی محمودیه ۴۵۲-۲ عالمگیری ۹۹۲-۲ په حواله ).

مسئله :بې لمانځه سړی دمسجد په جرګه ګی کښني مشر کول یا غړیتوب ورکول ناجائز دي .

(آپ کی مسایل ۱۴۱-۳).

## ایا متولی به دوقف کوونکی له کورنۍ څخه وي

پوښتنه : کومی کورنۍ چې مسجد جوړ کړی وي آیا دالازمه ده چې متولی به تل له هغې کورنۍ څخه وي که څه هم دوقف په لیك پانه کښني داسی کومه لارښوونه ، نه وي .

ځواب : که وقف کوونکی ځوك متولی کړی نه وو او اوسنی متولی وقف په صحیح ډول سمبال کولای نه شوای نو دحل اوعقد څښتنان کولای شی دحاکم په واسطه دامتولی معزول اوبل متدین شخص متولی کړي .

(فتاوی محمودیه ۱۸۰-۲).



مسئله :که واقف ځوك متولی کړی وو او هغه هم په دیانت سره وقف خوندی کولای شوای ،هغه اهل دي .

(فتاوی محمودیه ۳۱۷-۱۵).

مسئله :دوقف دصحت لپاره ثبت اولیك ضرور نه دي ژبنی خبره بالکل سمه ده په هم دي صورت کښی په هغه مسجد کښی لمونځ صحیح دي .

مسئله : که وقف کوونکی په لیك پانه کښی یابی لیکنی ځوك متولی کړی نه وو نودمحلی یو متدین مشر دي دمسجد عواید په مسجد اودهغه په ښیګنولګوی او دهغه محافظ دي وي .

(فتاوی محمودیه ۱۵۸-۲).

مسئله :ترڅو چې دمسجدجوړوونکی په کورنۍ کښی دمتولی کیدلو اهل موجود وي دنورو په پرتله هغه دمتولی کیدلو وړ اومستحق دي .

(فتاوی محمودیه ۱۲۵-۱۸).

## دمسجد اضافه عواید دوقف کوونکی اولاد ته ورکول

مسئله :کوم جایداد چې دمسجد لپاره وقف شوی وي دهغه عواید دواقف په کورنۍ کښی صرف کول جواز نلری که دوقف عواید زیات شول په هغوی نور جایداد واخستل شی اووقف دي شی ، بیا به زیات عواید نور وارو مسجدونو ته دورکړی جوګه شي .

(فتاوی محمودیه ۲۱۴-۱۷).

## دمسجد په تولیت کښې وراثت

**پوښتنه** : که چا په خپلو شخصي پیسو مسجد ودان کړ اودلمانځه کولو عامه اجازه یې ورکړه ،دهغه ترمړینې وروسته یې وارثان دااختیار لري چې نور خلګ له مسجد څخه منع کړي ؟

**ځواب** : که کومه ځمکه په شخصي روپو اخستله شوې وي ، مسجد وربانډې ودان شوی وي خلګو ته دلمونځ کولو اجازه ورکړل شوې وي پنځه وخته اذان اودجماعت لمونځونه پکښې شوي وي داوقافو په دفتر کښې یې دوقف ثبت شوی وي هغه شرعی مسجد دي په هغه کښې وراثت جاري کیدلای نشي نه یې دملکیت دعوه صحیح کیدلای شي ،نه څوك له لمونځ کولو منع کیدلای شي .

که مسجد دچاپه نوم نومول کیږي ،دشرعي مسجد په حکم کښې خلل نه پیښیږي لکه مسجد اکبری ، مسجد شاجهانی ، مسجد عالمگیري چې دپاچهانو په نومونو مشهور دي په بخاري شریف کښې په دې هکله مستقل بحث دي چې دچا په نوم مسجد مسمی کیدلای شي هغه چې په دې مسجد کښې لمونځ کوي یا یې کور ورته نژدې وي خو ددې مقصد هیڅکله دانه دي چې هغه یو مملوك مسجد دي چې دمسجد په وقف شوې ځمکه ودان شي ، کلیوال پکښې مرسته وکړي په هغه هیڅوك دملکیت دعوه کولای نشي .

(فتاوی محمودیه ۱۵۷-۱۵)



## که متولی دواقف دشرائطو خلاف عمل وکړي

**مسئله** :په متولي باندې دواقف دشرائطو پابندي لازمه ده خو تر هغه چې هغه شرائط دشریعت موافق وي او وقف ته هم گټور وي ،که په دې صورت کښې متولي دواقف دشرائطو خلاف عمل کوی دلیرې کولو وړ دي .

(محمودیه ۳۳۳-۱۵)

## دمتولي واک او اختیار

**مسئله** :هغه کارونه چې دوقف په گټه اودشرعي احکامو په چوکاټ کښې وي متولي هغه کولای شي که کوم کارونه ددې خلاف وو وربانډې اعتراض کیدلای شي .

(فتاوی محمودیه ۳۱۷-۱۵).

**مسئله** :په عامه مرسته (چنده) کښې متولي حق نه لري چې هغه بې ځایه اوپه ناوړه توګه ولګوي .

(فتاوی رحیمیه ۱۵۹-۳).

## دمتولي دلیرې کولو اسباب

**مسئله** : که دوقف دښیګڼو او ګټو خیال ونه ساتي یا خلاف الشرع کارونه وکړي دمسجد منتظمین ، دوقف هیئت یا حکومت هغه معزول کولای شي .

(فتاوی محمودیه ۳۱۷-۱۵ احسن الفتاوی ۴۲۵-۶).

**مسئله** :که دمسجد متولي دمسجد انتظام نه کوی ، له تولیت څخه یې لیرې کول واجب دي څوکسه متدین اوبارسوخه کسان دې جرګه ګې جوړه کړي متولي دې لیرې کړي او دوقف دفتر ته دې خبر ورکړي ، په

قانوني ډول يې دمسجد جايداد دهغه له لاسه وباسي دعايد اومصرف
حساب دي سم کړي .

(فتاوى محموديه ۱۸۴-۱۵ ).

## دمسجد منتظم له مسجدڅخه معاش اخستلای شي ؟

**پوښتنه** : په يوه مسجد کښي درې څلور منتظمين وو مسجد ډېر عوايد
درلودل ، دهغې دکرايې دحصول لپاره يې يو ملازم نيولى وو هغه
استعفى ورکړه ، اوس که له دې منتظيمنو څخه يو دملازم په ځاى کرايه
راټولوي شرعاً دمعاش اخستلوحق لري ؟

**ځواب** : که په وقف پاڼه کښې دمعاش يادونه شوې وه په هغې دي عمل
وشي ، که دمعاش يا دونه شوې نه وه اوداکار چاته پرته له معاش څخه
نه کاوو که همدى منتظم لکه څرنگه چې ور دي هغسې خدمت يې کاوو
نو ورته مناسب معاش (تنخواه – اجوره ) ورکول کيدلاى شي .

(فتاوى رحيميه ۸۱-۶ دعالمگيرى ۲۴۰-۳ په حواله ).

## دمتولي تبديلول

**مسئله** :مسجدونه دالله ﷻ دي هيڅ مسجد دچا شخصي ملکيت نه دي (
وان المساجد لله )(الايـة ) دمسجد دجوړونکي حق دي چې څوك
دتوليت دسرپرستى ، لپاره ورته وړو بولي هغه متول کړيخو که ديانت
ونه لري يا صلاحيت ونه نلري متولي کول يې صحيح نه دي که يې
متولي کړليرى کولاى يې شي خو بى سببه يې ليرى کول هم صحيح نه
دي .

(محموديه ۱۲۴-۱۸).

**مسئله** :دمسجدمتولي اومدرسي مهتمم به باعمله عالم وي که داسې
څوك نـه پيدا کيـدل دلمانځـه او روژې پابنـد ، امـين ، دوقـف په



مسايلو پوه ، دښـو اخلاقو څښتن ، علـم دوسـت اودپوهـانو عـزت
کوونکى شـخص ورتـه پـه کـار دي ، پـه دې صفتونو کښې که هرڅوك
وړاندي وو ،هغه ورته وړ دي .

(فتاوى رحيميه ۱۲۲-۲ ).

**مسئله** :که اهل تشيع خپل مسجد اهل سنتو ته ورکړ دمسجد انتظام دي
له پخوانى شيعه منتظم څخه نه اخلې ځکه دپخوا يې لاانتظام په لاس
کښې وو او کوم خيانت يې هم ليدل شوى نه وو له هغه سره مرسته په
کار ده خو که په خپله يې لاس ترى واخستل بيا بيله خبره ده .

(محموديه ۱۲۲-۱۸ ).

## دمسجد باني (جوړوونکى )

که چا دمسجد جوړولو وصيت وکړ ، يوه زوى يې په وقف شوى ځمکه
مسجد ودا ن کړ ، شل ديرش کاله وروسته يې بل زوى په خپلو روپو
اودنورو خلگو په مرسته دهغه مسجد په ځاى لوى مسجد جوړ کړ،
دمسجدباني (لومړي جوړوونکى ) څوك بلل کيږي ؟

**ځواب** : کوم شخص چې کوم وخت مسجد جوړ کړى هغه بيموسس (باني
)بلل کيږي لومړى شخص لومړنى باني او دوهم شخص دوهم باني او
چاچې ورسره کار کړى يا يې مرسته ورکړې ده هغوى يې په بنا او اساس
کښې شريکان دي.

(فتاوى محموديه ۱۹۲-۱۵ ).

**مسئله** :مسجد دهغه موسس ته منسوب کول څه مشکل نه دي جواز
لري چې باني ځمکه ورکړي او ورباندې مصرف يې کړى وي خو که
مؤسس په خپل ژوند کښې داسې نسبت نه خوښاوو بيا دې نورهم نه
ورپسې تړي .

(آپ کے مسائل ۱۳۵-۳ ).

## په خپلو پیسوجوړ شوی مسجد خپل بلل

**مسئله** :کوم مسجد چې وقف شي که دعامو خلکو په پیسو يې ودانې جوړه شوی وي یا دیوی کورنی په پیسو یا دیوه شخص په پیسو په هر صورت تر وقف کولو وروسته که څوك دهغه دملکیت دعوه کوی صحیح نه ده دالله ﷻ ارشاد دي (ان المساجد لله) که چا مسجد خپل ملکیت گانه داغلط دي خلگ دي هلته لمونځ کول نه پریږدي له فتنې اوفساد څخه دي ځان ساتی که هغه شخص یا کورنی چې دمسجد د ملکیت دعوه کوی ، نور خلگ هلته له لمونځ کولو منع کوي ، هغه لوی ظالم دي الهی ارشاد دي: (**من اظلم ممن منع مساجد الله ان یذکر فیها اسمه**) .

خو په داسی حرکت دي هم جنگ اوجدل نه کوي چې دعوی اودنگني به وي . (فتاوی محمودیه ۱۲۹-۱۸) .

## متولی ته د مسجد دشیانو داستعمال حق

**پوښتنه** : دمسجد اړوند کورونه ، زینی یا نور شیان څوك استعمالولای شی ، امام مؤذن اوکه متولی ته ؟

**ځواب** : دمسجد داړوند کورونو داستعمال حق هیچا ته نشته ، که چا استعمال کړی بدل اوکرایه به ورکوي ، که امام یا مؤذن ته کور یا یوه خونه ورکول کیږي هغه دي دخدمت په حق کښې ورکول شی یعنی ورسره معامله دي وکړای شی چې په دومره معاش او کور یاخونه کاروکړه متولی یابل څوك هم که ورڅخه گټه اخلي . کرایه دي ورکړي . دلرگي زینې یا نور شیان هم که څوك استعمالوي له عوض ورکولو پرته حق نلري .



(فتاوی محمودیه ۱۴۲-۱۸).

## که دمتولی خیانت ثابت شي

**مسئله** :که دمسجد اړوند دمتولی خیانت ثابت شی ، دوخت حاکم ته دي وښودل شی اوله تولیت څخه دي لیری کړای شی ، که یوازی شك وو نه دي لری کیږي خو متولی ته لازم دي چې حساب کتاب پاك ولری یادي له کارپوهو کسانو څخه یوه جرگه گی جوړه کړي چې شك اوشبه نه وي او اعتراض ځای ونلري . دمسجد پانگه له متولی سره امانت ده ، هغه په خپلو کارونو لگول یابل چاته قرض ورکول ورته جائز نه دي یوازی دمسجد په کارونو يې لگول صلاحیت دي که پکښې ناحقه تصرف وکړی ، دي ضامن دي .

(فتاوی محمودیه ۱۴۱-۱۰ عالمگیری ۲-۴۲۰).

**مسئله** ::متولی ته ښایی چې دمسجد عواید په مسجد ولگوی ، که زیات شول دمسجد لپاره دي کښېږدي په خپل شخصی مصرف يې لگول خیانت دي هغه باید معزول شی اوبل شخص دي متولی شی که دي دواقف له لوری تعین شوی وي او که وروسته ، خو معزول دي شی بل متولی دي تعین اوحساب دي ورڅخه واخستل شی په درمختار کښې دي چې که په خپله بانی هم داسی خیانت وکړی نو هغه معزول کیدلای شي .

(فتاوی دارالعلوم قدیم ۲۴۴-۵ ).

## که متولی امام نوکر وګڼي

مسئله :دامام منصب خورا لوړ دي که متولی هغه نوکر وبولی اوده‌ذلت خبره ورته کوی یابده معامله کوی غلط اوناجائز دي .

(فتاوی محمودیه ۱۸۴-۱۸).

مسئله :دامام دي عزت کیږی ، دهغه بی عزتی اوبی احترامی ګناه ده .

(کفایت المفتی ۹۲-۳ رحیمیه ۳۵۵-۴ ).

## دمتولی او امام مرورتیا (خفګان)

**مسئله** : دلوی غضب خبره ده چي ددوی ترمنځ خبري نه وي . ژر دي سره خبری پیل کړی ، نور خلګ دي دوی سره کښینوی څوسره پخلاشی کوم یو چی لومړی خبره وکړی دتحسین وړ دي ،که امام لومړیتوب وکړی ، لویوالی به یي ډیر شی که متولی لومړیتوب وکړی هغه یي نیک مرغی ده .

هغه امام چي په لمانځه کښی وړاندی ولاړ وي دالله ﷻ حق ادا کوی ،خپل اخرت سموی ، هغه ناراضه کول ، ورسره نه غږیدل ، هغه ذلیل کول ، غته محرومی اوبدقسمتی ده .

(فتاوی محمودیه ۱۸۵-۱۸).

« داسی امام مقررول په کار دي چی دخلګو دینی اواخلاقی اصلاح وکړی په شرعی امورو کښی خلګو ته لاره وښي ، په اختلافی مسائلو کښی پریکړی وکړای شی،په پوه کښی ددي منصب وړ وي .

امامت په اصل کښی یوه ستره ذمه واری ده هغه دنبوت وراثت ده داذمه واری هغه څوک سمبالولای شی چی اهل یي وي درسول الله ﷺ معمول داوو چی دلښکر مشر به یي مقرر کاوو په امامت به یي هم مامور کاوو



اوکه به یي څوک دکوم ښار حاکم ګماره هغه به دلمانځه امامت کاوو او حدود به یي جاری کول .

امام ته به دمقتدیانو حالات ، مسائل ، مشکلات اوضروریات تر یوه حده معلوم وي اوله خلګو سره به تعلق ساتی ، دااندازه دابو مسعودؓ الانصاری ﷺ له روایت څخه معلومیږی : یوسړی رسول الله ﷺ ته راغی اوعرض یي وکړ :

یارسول الله ﷺ ! زه په جماعت لمونځ نه کوم ځکه فلانی صاحب اوږد لمونځ کوی رسول الله ﷺ په دي خبره خورا خواشینی شو او ویي فرمایل «تاسو (لمونځ کوونکی) خلګ لیری کوی» .

څوک چی لمونځ ورکوی ، هغه دي لنډ لمونځ ورکوی ځکه په جماعت کښی ناروغ کم وس او ضرورت والا اشخاص هم ولاړ وي .

له دي حدیث شریف څخه معلومیږی چی کوم تعلق رسول الله ﷺ له امت سره درلود هغه دي اوس په امامانو کښی لیدل کیږي دتفصیل لپاره دامامت مسائل وګوری . (محمدرفعت قاسمی) .

## متولی دمسجد پیسی معاف کولای شی ؟

پوښتنه : دمسجد متولی کولای شی امام یامؤذن ته دمسجد ورته پاته شوی پیسی وبخشی ؟ هغه چی دمجبوری له امله یي نشي ادا کولای .

ځواب : داپیسی معاف کول دچا په واك کښی نه دي که یي څوك معاف کول غواړی هغوی دي ورسره مرسته وکړی اودارقم دي ورته پوره کړي .

(فتاوی محمودیه ۲۵۷-۱۲).

مسئله :که په چا باندی دمسجد پیسی یا بل څه پاته وو ، متولی ورته هغه معاف کولای نشي . (رحیمیه ۱۵۲-۲ ).

## که متولی امام ته تروخت وړاندې معاش ورکړي

**پوښتنه :** که امام کور جوړ وو ، دمسجد جرګه ګۍ هغه پیسې ورکولای شي چې بیا یې په معاش کښې ورسره مجرا کړي ؟

**ځواب :** له عام رواج سره سم ورته پیشکي معاش ورکول کیدلای شي په دي شرط چې دوظیفې دپرېښودلو په صورت کښې داداء کولو وس ولري او دوفات په وخت کښې یې له ترکې څخه دور کړي قدرت وي .

(احسن الفتاوی ۴۴۷-۴)

**مسئله :** دمسجد له عوایدو دامام اومؤذن دمعاش ورکول جواز لري ،زیاتول اوکمول یې دوقف په عاید ، دامام اومؤذن په لیاقت پوري اړه لري .

(کفایت المفتی ۲۲-۷).

## که عوایدهم زیات وو خومتولی ، امام ته کم معاش ورکاوو

**مسئله :** که دمسجد عواید کافي وو ، امام اوخطیب له ډیر وخت څخه دمسجد په خدمت کښې ولاړ وو دجمعې په ورځ یې بیان هم کاوو نیك اومتقي کسان وو ، لاس تنګي هم وو ، دمسجد په متولیانو لازم دي چې داشیاوو له ګرانۍ سره سم په معاش کښې ورته زیاتوالی وکړي ،دمسجد له عوایدو سره سره دکور داحتیاجاتو دپوره کولو په اندازه امام ته معاش نه ورکول ظلم دي .

( فتاوی رحیمیه ۲۲۲ ، ۹ ).

**مسئله :** فقهاوو په دې خبره تصریح کړې ده دمسجد په متولي اومدرسي په مهتمم لازمه ده چې دمسجد اومدرسې خادمانو ته دهغوی اړتیا قابلیت اوتقوی لحاظ وساتي معاش (مشاهره ،تنخوا ،اجوره)



ورکړي سره له دې چې عواید وي اومعاش کم ورکوي بده خبره ده اومتولي به خدای ﷻ ته ځواب ورکونکی وي .

(درمختار اوشامی ۲۸۹-۳ )

## متولي او د وقف خرڅول

**پوښتنه :** که دوقف یوه برخه متولي خرڅه کړي اوپاته برخه ورباندې ترمیم کړي ورته جواز لري؟

**ځواب :** دوقف کومه برخه خرڅول جواز نلري دوقف په کرایه ترمیم کول صحیح دي.

که دمسلمان حاکم په واسطه دمتولي لرې کول مشکل وو دکلي اومحلي پوه خلګ دې هغه لرې کړي .

(فتاوی محمودیه ۲۲۲-۲)

**مسئله :** اصل خبره داده چې که کوم شی په شرعي ډول وقف شو پلورل یې جواز نلري په کومه ځمکه چې مسجد جوړ شو دهغې خرڅول په هیڅ صورت جواز نلري هغه تل وقف اومسجد دی کوم منقول جائداد که دمسجد وو هغه دمسجد حکم نلري که کوم مسجد وران وو او دودانولو هیله یې نه کیدله جائداد یې ضائع کیده بیایې پلورل صحیح دي غوره داده چې عین همدا جایداد بل نژدې مسجد ته ورکړل شي که مشکل وو هغه جایداد دې خرڅ شي اوبیه دې بل مسجد ته ورکړل شي خودوران مسجد احترام دې وساتل شي که یې دیوال نه درلود احاطه دې ورباندې جوړه شي

که غیر منقول جایداد لکه مځکه دمسجد لپاره اخستل شوی وو ،مسجد وران وو یابل ضرورت وو دکلي اومحلي دمشرانو په رایه هغه جایداد خرڅیدلای شي خو که چا وقف کړی وو دهغه خرڅول جواز نلري

## که متولي امام ته تروخت وړاندي معاش ورکړي

**پوښتنه** : که امام کور جوړا وو ، دمسجد جرگه گی هغه پیسی ورکولای شی چی بیا یي په معاش کښې ورسره مجرا کړی ؟

**ځواب** : له عام رواج سره سم ورته پیشکی معاش ورکول کیدلای شی په دي شرط چی دوظیفی دپریښودلو په صورت کښې داداء کولو وس ولری او دوفات په وخت کښې یي له ترکی څخه دور کړی قدرت وي .

(احسن الفتاوی ۴۳۷-۴)

**مسئله** :دمسجد له عوایدو دامام اومؤذن دمعاش ورکول جواز لری ،زیاتول اوکمول یي دوقف په عاید ، دامام اومؤذن په لیاقت پوري اړه لري .

(کفایت المفتی ۲۲-۷).

## که عوایدهم زیات وو خومتولی ، امام ته کم معاش ورکاوو

**مسئله** :که دمسجد عواید کافی وو ، امام اوخطیب له ډیر وخت څخه دمسجد په خدمت کښې ولاړ وو دجمعی په ورځ یي بیان هم کاوو نیك اومتقی کسان وو ، لاس تنگی هم وو ، دمسجد په متولیانو لازم دي چی داشیاوو له گرانی سره سم په معاش کښې ورته زیاتوالی وکړی ،دمسجد له عوایدو سره سره دکور داجتیاجتو دپوره کولو په اندازه امام ته معاش نه ورکول ظلم دي .

(فتاوی رحیمیه ۲۲۲، ۹).

**مسئله** :فقهاوو په دی خبره تصریح کړی ده دمسجد په متولی اومدرسی په مهتمم لازمه ده چی دمسجد اومدرسي خادمانو ته دهغوی اړتیا قابلیت اوتقوی لحاظ وساتی معاش (مشاهره ،تنخوا ،اجوره)



ورکړي سره له دې چی عواید وی اومعاش کم ورکوی بده خبره ده اومتولی به خدای ﷻ ته ځواب ورکونکی وي .

(درمختار اوشامی ۲۸۹-۳ )

## متولي او د وقف خرڅول

**پوښتنه** : که دوقف یوه برخه متولی خرڅه کړی اوپاته برخه ورباندی ترمیم کړی ورته جواز لري؟

**ځواب** : دوقف کومه برخه خرڅول جواز نلري دوقف په کرایه ترمیم کول صحیح دی.

که دمسلمان حاکم په واسطه دمتولی لری کول مشکل وو دکلی اومحلی پوه خلگ دی هغه لرې کړي .

(فتاوی محمودیه ۲۲۲-۲)

**مسئله** :اصل خبره داده چی که کوم شی په شرعی ډول وقف شو پلورل یي جواز نلری په کومه ځمکه چی مسجد جوړ شو دهغی خرڅول په هیڅ صورت جواز نلری هغه تل وقف اومسجد دی کوم منقول جائداد که دمسجد وو هغه دمسجد حکم نلری که کوم مسجد وران وو او دودانولو هیله یي نه کیدله جائداد یي ضائع کیده بیایي پلورل صحیح دی غوره داده چی عین همدا جایداد بل نژدی مسجد ته ورکړل شي که مشکل وو هغه جایداد دی خرڅ شي اوبیه دی بل مسجد ته ورکړل شي خودوران مسجد احترام دی وساتل شي که یي دیوال نه درلود احاطه دی ورباندی جوړه شي

که غیر منقول جایداد لکه مځکه دمسجد لپاره اخستل شوی وو ،مسجد وران وو یابل ضرورت وو دکلی اومحلی دمشرانو په رایه هغه جایداد خرڅیدلای شي خوکه چا وقف کړی وو دهغه خرڅول جواز نلری

دمسجد دورانی په صورت کښی دی عواید بل نږدی مسجد ته ورکول کیږي.

(فتاوی محمودیه۱۹۱-۲).

## که متولی خلک له مسجد څخه منع کول

**پوښتنه** : که په کوم مسجد کښی عامه اجازه نه وه متولی لمونځ کونکی منع کول او ویل یي په ښار کښی نور مسجدونه هم شته ایا په داسی مسجد کښی لمونځ کیدلای شي؟

**ځواب** : په شرعی مسجد کښی له لمونځ کولو دچا منع کول جواز نلری که څوك داکار کوی هغه غلطی کوی په دی منع کولو هغه دده ملکیت نه گرځی او لمونځ پکښی صحیح دی.

(محمودیه ۱۹۹-۱۰)

مسئله :که څوك په خپله ځمکه مسجد جوړ کړی یادمسجد جوړولو لپاره ځمکه ورکړی هغه بیا داحق نه لری چی هلته له لمونځ کولو څخه څوك منع کړی له لمونځ کولو څخه منع کول لویه گناه ده.

[ ومن اظلم ممن منع مساجد الله ] الایه بقره)

(فتاوی محمودیه ۱۹۷-۱۰ کفایت المفتی ۱۲۱-۳)

## په مسجدونو کښی له لمونځ کولو ممانعت

[ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَى فِي خَرَابِهَا أُولَـٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ ]

ددی ایت شان نزول خو دمفسرینو په نزد له دوو پیښو څخه کومه ځانگړی پیښه ده.

خوبیان یي په عامو تورو کښي یوه مستقله قانونی ضابطه ده الفاظ داسی دی چی حکم یي ترنصارااوو یا مشرکینو پوری ځانگړی نشي



بلکه دنړی تر ټولو قومونو پوری عام شي همدا وجه ده چی په دی ایت کښی یي دبیت المقدس په ځای د(مساجد الله) ذکر وکړ ترڅو په مسجدونو داحکم عام شي او دایت شریف مضمون به داسي شي.

څوك چي دالله له مسجد څخه خلگ څوك چی هلته پکښی ذکر کوی ،منع کوی یا داسی کار کوی چی له هغه څخه مسجد وران شي هغه لوی ظالم دی.

دخدای ﷻ دمساجدو دعظمت غوښتنه داده چی کله هلته څوك ننوزی له هیبت،عظمت خشوع اوخضوع سره ورننوزی لکه څرنگه چی یوه شاهی دربار ته ننوزی.

ددی ایت څخه څو ضروری احکام راوزی.

لومړی داچي ټول مسجدونه دمسجد دادابو په لحاظ سره برابر دی لکه چی دبیت المقدس ،مسجد حرام یانبوی مسجد بي حرمتی ستر ظلم دی ، دنورو مسجدونو حکم هم داسی دی که څه هم دي دریو مسجدونو ته ځانگړي عظمت ورپه برخه دی . اوهغه یو منلی حقیقت دی.

په مسجد حرام کښی دیوه لمانځه ثواب دیو لك(سلو زرو) دلمونځو نو له ثواب سره برابر دی چی نبوی مسجد اوبیت المقدس کښی دپنځوسو زرو لمونځونو له ثواب سره برابردی.

په دی دریو مسجدونو کښی دلمونځ دکولو په نیت له لری ځایونو څخه هلته ورتلل ډیر ثواب لری خوله دی مسجدونو څخه پرته نورو مسجدونوته له لری ځای څخه ورتلل رسول اللهﷺ منع کړی ده

دوهمه مسئله داده چی په مسجد کښی له لمونځ کولو اوذکر کولو څخه څوك منع کول په هر صورت ناروا او حرام دی دادوه صورتونه لری : یو داچی هغه په صراحت اوڅرگنده توگه منع کړای شي اوبل داچی په مسجد کښي شر اوشور کوي یا دمسجد خواوشاموسیقي غږول او

دخلگو په لمانځه اوذکر کښې خلل واردول دی داهم دالله ﷻ له ذکر څخه منع کول دی.

همداسې که څوك په لمانځه تسبيح ياتلاوت لگياوی په مسجد کښې په لوړ غږ تلاوت يا په زوره ذکر کوی چې دنورو لمونځونو ذکر اوتلاوت ته زيان رسيږی داهم بل صورت دی چې دالله ﷻ له ذکر څخه خلك منع کوی فقهاوو داډول ذکر هم ناروا بللی دی خو که مسجد خالی وی بيا ستونزه نلري.

له دی څخه داهم څرگنديږی چې خلك په لمانځه ياذکر مصروف وو دځان لپاره سوال کول يادديني کارونو لپاره مرسته غوښتل هم په داسی وخت کی منع ده.

دريم مسئله: دمسجدونو ورانول که په هر صورت وی ناروا ده که هغه دمسجد انهدام ياورانول وی ياکه داسی اسباب مسجد ته ورل وی چې مسجد وربانذی ورانيږی دمسجد ورانول دادی چې هغه خلگ دانشی ياکم شی څکه دمسجد ودانی دهغه ديوال نقش اونگار نه بلکه دهغه ودانی دالله ﷻ دذکر کونکو په موجوديت کښې دی قرانی ارشاد دی

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ (بقره)

يعنی دمسجد اصل ودانی له هغو خلگو څخه ده چې په الله ﷻ اودقيامت په ورځ ايمان لری، لمونځ ادا کوی، زکات ورکوی اوله الله ﷻ څخه پرته له بل چا څخه نه ويريږی، درسول الله ﷺ په حديث شريف کښې راځی چې «دقيامت په نږدی وخت کښې به دمسلمانانو مسجدونه په ظاهره ودان اوښکلی وي خو په حقيقت کښې به وران وي، لمونځ کوونکی، پکښې کم وي که څه هم دوړاندنی آيت شان نزول



دحديبی پيښه ده چې مشرکانو، مسلمانان و مسجد حرام ته له ورتلو څخه منع کړل، خو له دي ايت څخه ښکاری چې دمسجد ودانی يوازی دانه ده چې ړنگ شی بلکې مسجد چې دکوم مقصد لپاره جوړشوی دي (لمونځ اوذکر) که هغه پکښې نه وي نو هم مسجد وران بلل کيږي.

علی ﷺ دمسجدونو دودانی مطلب داښيی چې هلته خلگ له خشوع اوخضوع سره حاضر شي، هلته په ذکر اوتلاوت مصروف وي. اودمسجد وراني يي دلمونځ کوونکو نيشتوالی اوکموالی بللی دي.

(معارف القرآن ج۱ ص ۲۴۳ مخ بقره).

## دعيدگاه په نوم دمسجدونو بل نظام

دجمعی دلمانځه له اجتماع سره، سره په کال کښې دوه نوری ځانگړی ټولنی، دعيد الفطر او عيد الاضحی دلمونځونو دي، دهغوی هم له مسجدونو سره ژوری اړيکی دي اودمسجدونو له نظام څخه بيلېدلای نشي.

عيدگاه په ډيرو شرعی احکامو کښې دمسجدتابع ده خويوازی داده چې داختر لمونځونه په پنځو لمونځونو کښې شامل نه دي بيل دي خو په کال کښې دوه ځله دورځی په لمونځونو زياتيږی په شريعت کښې دادوه لمونځونه واجب دي له همدی امله نه ورته اذان شته اونه تکبير نور شرائط يي دجمعی دلمانځه دي داټولنه دجمعی تر اجتماع څه شانداره اوستره ده، اهتمام پکښې زيات او ادايي دمسجد په ځای په بهر کښې ده.

په يوه کښې دفطر دصدقی حکم دي اوپه بله کښې دقربانی ترڅو له بی وزلو سره څه مرسته شوی وي اوهغوی هم په دي خوشحالی کښې شراکت وکړای شي.

که دحدیثونو په ذخیره کښې غور وشي معلومیږي چې په دوی کښې ډیرې ګټې مقصود دي داسلام شوکت اودمسلمانانو دشان اظهار هم دي اوغالبا له همدې وجې په یوه لاره ورتلل دي اوپه بله راتلل ، په یوه کښې لاپه لوړ اواز تکبیرونه ویل هم شته.

دحدیثو په کتابو کښې داخبره هم ښکاره ده چې رسول الله ﷺ به داختر په ورځ میرمنو ته هم امرکاوو چې هغوی هم راووزي آن هغوی چې لمونځونه هم نه کوی له همدې امله ځینې پوهان وايي چې داسلام په پیل کښې داحرکت داسلام دشان اوشوکت څرګندونه وه اوس چې هغه ضرورت په هغې اندازه پاته نه دي نو دمیرمنو غونډه پکښې ناخوښه وګڼله شوه .

## داخترونو داجتماع اهمیت

داخترونو له ټولنو څخه په خیرالقرون کښې غټه ګټه اخستله شوې ده او اوس هم اخستله کیدلای شي دابیله خبره ده چې موږ ددین په حکمتونو نه پوهیږو اوله داسې اجتماع څخه دګټې اخستلو کارمو پرې ایښی دي نن هم که پوهان دې لورې ته پاملرنه وکړي دیوه سترکنفرانس کار ترې اخستلای شي ،ددین دخبرو خپریدل پکښې اسانه دي هغه خلګ چې له دینی زده کړو سره نابلده دي ورته زده کړه کیدلای شي .
په هرحال موږ چې دخپل غفلت له امله هرڅه کوو خوله احادیثو څخه معلومیږي چې رسول الله ﷺ له دې غونډو څخه ستره ګټه اوډیر کار اخست ،دتبلیغ اوخپرولو په لاره کښې رسول الله ﷺ ته ورڅخه مرسته رسیدله ، دجهاد کار چې خورا مهم دې له همدې غونډی به پیل کیده ، په حدیث کښې داخانګړتیا یاده شوې ده .



ابوسعید خدری رضی الله عنه وايي « رسول الله ﷺ به په واړه اولوی اختر کښې عیدګاه ته تشریف راوړ ترهر څه وړاندی به یې لمونځ ادا کړ بیا به یې خلګو ته نصیحت کاوو ، که به داسلام دلښکر دروانولو اراده وه هغه به یې روان کړ ، که به کوم کار کول لازم وو دهغه په هکله به یې حکم صادر کړ اوبیا به بیرته کورته ګرځیدو .

(بخاري باب الخروج الی المصلی ).

## ملکي اودیني کارونه

داحدیث څومره واضح دي دحدیث په الفاظو کښې ددې غونډی اهتمام معلومیږي دمجاهدینو لیږدول څه وړه خبره نه ده کاشکی موله هغه څخه سبق اخستی وای اوکه دینی اوحکومتی کارونه چې موپه وړاندی وايي پکښې مرسته مو ترې اخستی وای اجتماعی کارونه هم آسانه نه دي غالبا ترلمانځه وروسته دخطبې ویلو حکمت هم داوی چې په ډاډ سره ددین دتبلیغ کاروشي خو جمعه چې ژر ژر راځي خطبه ترلمانځه وړاندې ده ترجمعه وروسته سنت اونوافل شته خو داخترونو ترلمانځه وروسته نشته .

## دتبلیغ او د دیني احکامو د خپرولو موقع

نن هم له داسې اجتماع څخه دینی اودنیایي ګټه ترلاسه کیدلای شي ، دلته ددین دتبلیغ ښه موقع ده خلګ له هرڅه ګوښه شوی یوازی ددین لپاره راټول شوي وي دیوه مقصد له پاره له لیری او نژدی څخه راغلی وي خدای ﷻ دي وکړي چې مسلمانان ورڅخه ګټه واخلي اودمسجد دنظام په دي برخه کښې غور اوفکر وکړي .

(په اسلام کښې دمسجدونو نظام له ۸۲ تر ۸۸ ).

## دمسجد اوعیدگاه تر مینځ فرق

**پوښتنه** : دعیدگاه حکم دمسجد په شیر دي که څه توپیر لری؟ دعیدگاه په حدود کښې مکتب یا دینی مدرسه فعالول څرنگه دي؟ دانسانانو اوځاروو لاره تری تیریدل؟ دماشومانو بولی پکښې څرنگه دي؟ که دعیدگاه څنگ ته پرته له حایله هدیره وي لمونځ پکښې څرنگه دي؟

**ځواب** : داقتداء دجواز په هکله دعیدگاه حکم دمسجد دي په نورو احکامو کښې دمسجد په شیر نه دي بلکې دمسجد دپناه اومدرسې په حکم کښې دي کوم شیان چې هلته جائز دي دلته هم جائز دي هغه چې هلته ناروا دي دلته هم ناروا دي ښکاره ده چې په مدرسه اودمسجد په پناه کښې لاره نه وي نوعیدگاه هم ورڅخه خوندی ساتل په کار دي دماشومانو دلوبو پکښې گنجائش شته خوداسې نه چې په منظم ډول پکښې لوبې کیږی یا دلوبو میدان شي.

که قبرونه لگیدلی وي اوسجدی له ځای سره نژدی وي لمونځ پکښې تحریمی مکروه ده خوکه ښئ ، کینې یاشاته وي په کراهت کښې یي کمول راځی که فاصله زیاته وي کراهت نشته .

(فتاوی محمودیه ۳۱۲-۸ کفایت المفتی ۱۲۹-۳ احسن الفتاوی ۲۲۸-۲).

**مسئله** :په عیدگاه کښې دجنازی لمونځ جائز دي .

(کفایت المفتی ۱۴۳-۳).

**مسئله** :داقتداء په جواز کښې عیدگاه دمسجد حکم لری په نورو امورو کښې ورسره فرق لری مسجد ته دجنابت په حال کښې ننوتل منع دي خوعیدگاه ته منع نه دي . .

(در مختار ۲۸۴-۱).



**مسئله** :په عیدگاه کښې دشکر دلمانځه لپاره راغونډیدل صحیح دي داختر او داخترونو دلمونځونو احکام بیانیدلای شی خو داغوره ده چې سیاسی غونډې پکښې ونشي .

**مسئله** :دفوټبال لوبه چې دواقف دنیت اوغرض خلاف ده. ځان ورڅخه ساتل ضروري دی. (فتاوی محمودیه ۱۲۱-۱۰ فتاوی رحیمیه ۳۵۷-۲).

**مسئله** :په عیدگاه کښې دلوبو منظره کول ، خواوی نیول ، موسیقی غږول اونور محرمه امور حرام دي ، متولی دي دداسې شیانو اجازه نه ورکوی ، دمتولی په اجازه یا بی اجازی داسې کارونه په عیدگاه کښې جواز نلري .

(فتاوی دارالعلوم ۲۱۵-۵).

## له مسجد څخه عیدگاه جوړول

**پوښتنه** : که په یوه کلی کښې یومسجد وو ،خلگو بل مسجد دضرورت په خاطر جوړ کړ او زوړ مسجد یي پراخ کړ عیدگاه یي کړه ، آیا داجواز لري ؟

**ځواب** : چیري چې داختر لمونځ روا وي هلته په مسجد کښې هم روا دي خوکه عذر ستر نه وي نو عیدگاه ته تلل سنت دي که داکلی دومره ستر وي چې دجمعې اواخترونو لمونځونه پکښې صحیح وي یعنی خلگ یي ډیر وي ، بازار ولری ، دخلگو شمیر یي نژدي دری زره تنه وي هلته په مسجد اوعیدگاه دواړو کښې لمونځ صحیح دي که کلی وړوکی وي نو داختر لمونځ نه په مسجد کښې صحیح دي اونه هم په عیدگاه کښې،

مسجد په عیدگاه بدلول ، که مطلب داوي چې هلته به پنځه لمونځونه هم کیږی اوپراخ به شی چې دضرورت په وخت کښې داختر لمونځ هم پکښې وشی نو کومه ستونزه نشته خو چې کلی لوی اوداختر لمونځ

پکښې کیږي اوکه مطلب داوي چې مسجد یوازي عیدگاه شي اونور
پنځه وخته لمونځونه پکښې نه کیږي داپه هیڅ صورت جواز نلري ،ځکه
هغه ځمکه چې په اصل کښې مسجد وه معطله پاته کیږي ،لمونځونه
پکښې نه کیږي .

(فتاوی محمودیه ۴۲۹-۲ ).

## دفساد دمخنیوې په خاطر بله عیدگاه جوړول

مسئله :دفساد اوتفرق لپاره دوهم عیدگاه جوړول ناروا ده ، خو که فساد
پیداشوی وو اودفع یي دبلی عیدگاه له جوړولو پرته نه کیدله نو بیا بله
عیدگاه جوړول صحیح دي کله چې بله عیدگاه جوړه شوه اووقف شوه
نوبیا په دواړو عیدگاه وو کښی لمونځ جواز لري .

(فتاوی محمودیه ۴۷۰-۲ ).

مسئله :که یوه عیدگاه کافی وه پرته له شرعی ضرورت بله عیدگاه
جوړول دشریعت دمنشاء خلاف ده .

(رحیمیه ۳۵۲-۲ ).

## په واړه کلي کښې عیدگاه جوړول

مسئله : که کلی دومره وړوکی وو چې هلته دجمعې دلمونځ د کولو
شرائط برابر نه وو . نودعیدگاه جوړول هم ضرور نه دي ، نوهمدادواړه
کلی هستوګنی دسنت تارکین نه دي خو په قصبه ( لوی کلی ) کښی چې
دجمعی لمونځ پکښې کیږي اوعیدگاه پکښی نه وه جوړول یي ضروري
دي کنه اهل یي دسنت تارکین دي .

(فتاوی رحیمیه ۳۵۲-۲).



## دعیدگاه دجوړولو ضرورت

مسئله :له ودانیوبهر صحرا اوځنګله ته وتل اوداخترونو لمونځ کول
افضل اوسنت دي که عیدگاه وه که نه وه ، عیدگاه جوړول مصلحت ته
نژدې ده څو خلګ اعتراض ونکړي چې زموږ په ځمکه اوکښت کښې
ولې لمونځ کوی ،یا کیدلای شی دلمانځه لپاره خالی ځای ونه موندل
شي کښتونه شوي وي .

(فتاوی محمودیه ۵۳۰-۱۲).

## دعیدگاه خرڅول

پوښتنه : که عیدگاه دودانیو په منځ کښی راغله ، هغه خلګو پریښودله
اوبهر یي بله جوړه کړه ، آیا دازړه عیدگاه ددوکانونو یا کورونو
دجوړولو لپاره خرڅولای شي ؟

ځواب : که هغه عیدگاه وقف وه خرڅول یي جواز نلري ، یوازی دودانیو
په زیاتیدلویي تغیر ته اړتیا نشته ، هغه دي په خپل حال وساتله شي .

مسئله :که موجوده عیدگاه کافی نه وه اوبهر دبلی عیدگاه دجوړولو
ضرورت وو نودبلی عیدگاه جوړول ممانعت نلري جوړه دي شی خو
دکمزوری اوناروغو کسانو لپاره دي زړه عیدگاه په خپل حال پریږدي
هلته پنځه گونی لمونځونه پکښی کول هم صحیح دي .

دعیدگاه ځمکه چې وقف وي ، دهغی خرڅول جائز نه دي ، دوقف ځمکه
له ملکیت څخه وتلی ده ،خرڅول په ملکیت کښی کیدلای شی ځکه یي
خرڅول صحیح نه دي .

(فتاوی محمودیه ۵۳۷-۱۲).

مسئله :که دچندي (مرستی) په پیسو ځمکه واخلی ، داخترونو دلمونځونو لپاره یې وقف کړی ، داختر لمونځ پکښې کوی ، دهغې خرڅول جائز نه دي.
که یې وقف کړی نه وه خو دوقف اراده یې وه او په عارضی ډول یې پکښې لمونځونه کړی وو بیا دچندی دورکوونکو په اجازه هلته کورونه ، دوکانونه یاباغ جوړولای شی خرڅول یې هم صحیح دي خو غوره داده چې بیه یا عاید زړی عیدگاه یا مسجد اویا هم په دینی کارونو کښې په مشوره سره مصرف شي.

(فتاوی محمودیه ۳۱۰-۱۵).

## دشهرت لپاره عیدگاه جوړول

پوښتنه : متولی وايي زه به په خپلو پیسو عیدگاه جوړه کړم خوزما نوم به وربانډی لیکی ، نو په عیدگاه باندی دجوړوونکی نوم لیکل څرنگه دي ؟

ځواب : عیدگاه دالله ﷻ درضا لپاره جوړول دثواب کار دي نوم وربانډی لیکل او داقید اېښودل دشهرت لپاره ده ، ثواب ختموی ، متولی دي داسی نه کوی له دي ارادي لرلو څخه دي توبه وکاږی استغفار دي ووايي ، په کوم کار کښې چې اخلاص نه وي دالله ﷻ په دربار کښې نه قبلیږي.

(فتاوی محمودیه ۱۷۸-۱۵).



## له عیدگاه څخه هدیره جوړول

مسئله :که کومه ځمکه دلمانځه لپاره وقف وي هغه ړنگول او هلته مړی ښخول صحیح نه دي. هغه دي عیدگاه پاته شی. که هغه ځای تنګ وو خواوشا یې هدیره وه ، هغه زړه شوی وه هلته دي نور مړی نه ښخوی ځکه دعیدگاه لپاره له هدیری استفاده کیدلای شی .که مړی خاوری شی په هغی هدیره کښې عیدگاه پراخیدلای شی ،داهم صحیح ده چې بل ځای هم عیدگاه جوړه شی او دواړه ځایه داختر لمونځ وشی یا دوهم ځای عیدگاه شی او زړه عیدگاه دپنځه وخته لمونځونو لپاره پاته شي .
لنډه داچې موجوده عیدگاه ړنگول او له لمانځه پرته دبل کار لپاره استعمالیدلای نشي .

(فتاوی محمودیه۳۰۱-۱۵).

## دهدیري عواید په عیدگاه کښې لگول

مسئله :دوقف شوی هدیری عواید په نورو ځایونو لکه مدرسه یا عیدگاه کښې صرفول جواز نلري. خو که هدیره ته یې اړتیا نه وه مثلاً: احاطه یې نه غوښته ، محافظ یې نه غوښت یا نور ضروریات یې پوره وو بیا په مشوره سره دمدرسی یا عیدگاه که دودانولو ، معاش ، دکتابونو اخستل یابل څه ته اړتیا وه مصرف کیدلای شی. ترڅو عواید ضائع نه شی. اودچا په غاصبانه قبضه کښې ورنشي .

مسئله :داختر لمونځ غوره داسی ده چې یو ځای وشی خو که عوارض وو مثلا ځای تنګ وو ، په امامت کښې اختلاف وو یا نور څه بیا په ډیرو ځایونو کښې کول څه حرج نه دي . که په یوه ځای کښې دفتنی اوفساد ویره وه نو غوره داده چې بیل بیل وشی . داسی وخت دافضل کمول

واجب دي او دمسلمانانو ترمنځ تفرقه اچول ګناه ده ځان ورڅخه ساتل لازم دي .

(فتاوی محمودیه ٢١٢-٦ درمختار ١١٢-١).

### دوه پوړیزه عیدګاه

پوښتنه : که عیدګاه تنګه وه ، بهر بله عیدګاه جوړول غوره دي که همدا دوه پوړه کول ؟

ځواب : که عیدګاه دوه منزله کیږي کیدلای شي ، که بهر بله جوړوي همدا دي دپنځه وخته لمونځونو لپاره پریږدي . یا دي زړه عیدګاه دمعذورو خلګو داختر دلمانځه کولو ته هم هغسې عیدګاه پاته شي .

(فتاوی محمودیه ٢١٢-١٧ امداد الاحکام ١-٤٥٤).

### په عیدګاه بام اوپه زیاته برخه روغتون یا بل څه جوړول

پوښتنه : ١-آیا عیدګاه مسجد دي ؟

٢-آیا عیدګاه یوازې هغه وخت دمسجد په حکم کښې چې هلته داختر دلمانځه دادا لپاره خلګ راغونډ وي ؟

٣- داختردلمانځه لپاره له غونډو سره سره دعیدګاه مقام اوحیثیت څه دي ؟

ځواب : داخترونو لمونځونه تر ودانیو بهر په خلاص ډګر کښې اداء کول مسنون او مستحب کار دي . په دي توګه داسلام اومسلمانانو شوکت ښه څرګندیږي . دتودوخې تر زیاتیدلو دي وړاندې لمونځ وشي . دزیات اورښت په وخت کښې دي په جامع مسجد کښې ادا کړای شي که زیات اورښت یابل څه مشکل وو دوړوکي اختر لمونځ په دوهمه ورځ اودلوی اختر لمونځ په یوولسمه او دوو لسمه نیټه هم صحیح دي .



په عیدګاه باندي بام جوړول پخوا نه وو اوس هم عموما نه جوړیږي . دعیدګاه دمیدان حکم په ادب اواحترام کښې دمسجد نه دي . هلته دجنازې لمونځ مکروه نه دي . خوکه داختر دلمانځه لپاره وقف شوی وي دبل کار داستعمال جواز پکښې نشته . اوکومه ځمکه چې دعیدګاه لپاره وقف شوی وي ، دهغې مصرف بل څه ته بدلول حق نه دي . له دي سره ، سره به په نورو قومونو باندې ناوړه اغیزه کوي وایي به چې مسلمانان خپل عبادت ځایونه په کورونو ، دفترونو یا روغتون بدلوي ګواکې دایې په مذهب کښې دداسې تصرف اجازه ده . نو وران مسجدونه ولې دبل څه لپاره مجاز نه دي . تراوسه حکومت ته دامعلومات شته چې عبادت ځایونه دبل څه لپاره استعمالیدلای نشي . خوکه یوځل داسې کاروشي نوبیا به مثال ګرځي اودفتنو دروازې به خلاصیږي . حکومت به هم داجتماعي ضروریاتو په اساس قبضه کول پیل کړي او ددي کار مخالفت به مذهبي مخالفت نه بولي .

(فتاوی محمودیه ج ١٨ ص ٢٢٣).

### په ګروشوي ځمکه کښې مسجد جوړول .

پوښتنه : که چا دڅه وخت لپاره ځمکه خرڅه کړه ، هغه وخت پوره شو خو اخستونکې ورباندې عیدګاه جوړه کړې وه . مالك ځوځو ځله ورته وویل چې عیدګاه ړنګه کړه . آیا داسې کول جائز دي ؟

ځواب : داسې بیع شرعا ګروی ده ورڅخه ګټه اخستل جواز نلري ، هغه وقف کول اوعیدګاه ورباندې جوړول صحیح نه دي . مالك ته ورکول یې ضروري دي .

(فتاوی محمودیه ١-٣٠١-١٥ دمجمع الانهر ٧٣٨-١ په حواله ).

## عیدگاه ړنګول هلته ښوونځې جوړول

**مسئله** : عیدگاه ړنګول اوهلته ښوونځې جوړول هیڅکله هم روانه دي . دادوقف کوونکي دمقصدخلاف کار دي . (مشروط الواقف کنص الشارع)

(درمختار)(فتاوی محمودیه ۳۰۷-۱۵احسن الفتاوی ۴۲۴-۶ ).

## د عیدگاه د ځمکې بدلول

**پوښتنه** : زړې عیدگاه ته نژدې یوه ټوټه ځمکه ده اندازه یې دعیدگاه دړې برابره ده . سرپه سرېې بدلوی که هلته نوی عیدگاه جوړه شي هرډول سهولتونه به پکښې وي آیا دځمکې بدلول یې جواز لري ؟

**ځواب** : که دپخوانی عیدگاه ځمکه وقف وه تبادله یې جواز نلري . که نوی عیدگاه ودانوی دازړه عیدگاه دي همدغسې وقف پاته شي. باغ دي پکښې کښېږدي اودنوی عیدگاه ضروریات دي ورباندې پوره کوي .

(فتاوی محمودیه ۳۲۴-۱۵).

( یادي دکمزورو او ناروغانو لپاره عیدگاه پرېږدي یا دي دپنځه وخته لمونځونو دادا لپاره مسجد کړي اوکه بیاهم ضرورت نه وو باغ دي کړي اوعاید دي په نویعیدگاه ولګوي . (رفعت قاسمی).



## داختر لمونځ په عیدگاه کښې سنت دی

**مسئله** : عیدگاه ته په تلوراتلو کښېتکبیرونه ویل مستحب دي.عیدگاه ته په رسیدلو دي تکبیرونه بس کړي خوکه یې ورور ورو ویل جواز شته.

(فتاوی رحیمیه ۱۲۴ ج۱۰).

**مسئله** :که څه هم جامع مسجد پراخ وي خوپه عیدگاه کښې داختر لمونځ کول مندوب دي.

( طحطاوی ۲۹۰ ).

**مسئله** :که عیدگاه ته خلګ لاړل لمونځ یې هلته وکړ اوځینو په ښار کښې په جامع مسجد کښې وکړ نودملامتې خبره نه ده. که ټول خلګ په مسجد کښې لمونځونه وکړي بیا دمندوب خلاف ده.

( محمودیه ۵۳۵-۱۲ ).

**مسئله** :داخترونو لمونځونه په عیدگاه کښې کول مؤکد متوارث سنت دي. رسول الله ﷺ دنبوی مسجد له فضیلت سره ،سره په مواظب ډول دلمانځه لپاره عیدگاه ته تشریف وړ یوازې یوځل یې داورښت له کبله په مسجد کښې ادا کړی دي .

په اخترونو کښې عیدگاه ته تلل سنت دي که پرته له عذر څخه څوك پاته شي دسنتوتارك اوملامتې وړ دي اوپه پریښودلو یې عادی کیدل ګنهګار دي .

په درمختار کښې راځي چې دتحریمي مکروه مرتکب ګنهګار دي لکه دواجب په ترك چې ګنهګار کیږي اودمؤکد سنتو هم داحکم دي..

(شامی ۲۹۵-۵ ).

**مسئله** :که عیدگاه له ښارڅخه لیرې وه اوناروغان اوکمزورې کسان په تکلیف کیدل. په مسجد کښې دي داخترونو لمونځونه ادا کوي .

(فتاوی رحیمیه ۱۲۴-۱۰کفایت المفتی ۲۴۹-۳).

## له عیدگاه څخه مسجد جوړول

**مسئله** :دښار له ودانیو بهر عیدگاه لرل ضروري ده څکه په عیدگاه کښې داخترونو لمونځ کول مؤکد سنت دي. نودعیدگاه دپاته کیدلولپاره دي مسجدبل ځای جوړکړی. که عیدگاه په ودانیو کښې راغله نو که دخلگو اتفاق وو هغه په مسجد بدلولای شي خو دعیدگاه دجوړولو ذمه واري وربانديپاته ده .

دباني اومؤسس څخه مقصد هغه شخص دي چې مسجد ته یي ځمکه وقف کړې وي .که خو کسانو سره مرسته وکړه اوځمکه یي واخستله اودمسجدلپاره یي وقف کوله دټولو نیت معتبر دي .

(فتاوی رحیمیه ٨٣-٢).

## دمسجد فرش اومنبر عیدگاه ته وړل

دمسجد فرش عیدگاه ته وړل صحیح نه دي . په یوه روایت کښې دمنبر دوړلو جواز راغلی دي . په بل کښې مکروه بلل شوی دي نو غوره داده چې منبر هم نه یووړل شي .

( امدادالاحکام ۴٢٢-١ ).

**مسئله** :که عیدگاه ته دلمانځه فرشونه په دې نیت ورکړل شي چې داختر دلمانځه لپاره په عیدگاه کښې استعمال شي او نور په مسجد کښې بیا څه ستونزه نشته

همدا سي که یي دمسجد دفرشونو دورکولو په وخت کښې ویلي وو چې داختر په لمانځه کښې دي عیدگاه ته ورکول کیږي بیاهم ممانعت نشته .

(فتاوی رحیمیه ١١٠-٢).

**مسئله** :په عیدگاه کښې په لوړ اواز سره تکبیر ویل صحیح نه دي .

(فتاوی دارالعلوم ٢١٧-٥).



**مسئله** :که دایقین وو چې سیلابونه به عیدگاه رنگه کړي . لوازم دي نقل اوبل ځای دي عیدگاه جوړه کړي.که پخوانی عیدگاه وساتل شوه وقف پاته کیږي . هیڅ ډول تصرف پکښې جواز نلري.

(فتاوی دارالعلوم ٢٢۴-٥ ردالمحتار ۵١۴-٣).

**مسئله** :په جامع مسجد کښې هم داخترونو لمونځونه ادا کیدلای شي خو سنت اوافضل ځای یي صحرا (ځنګل) دي .

(فتاوی دارالعلوم ٢٢٩-٥).

## که احتجاجاً په عیدگاه کښې لمونځ ونشي

**پوښتنه** : که دحکومت یا غیرمسلم خلګو دبدې رویي له امله ، خلګ داحتجاج په توګه پکښې لمونځ ونکړي آیا داکار سم دي ؟

**ځواب** ::که کومه خطره وه یا پکښې دښځو، ماشومانو ، ناروغانو اوکمزور لپاره پریشانی پیدا کیدله بیا عیدگاه پریښودل صحیح دي. یوازې داحتجاج په توګه عیدگاه پریښودل صحیح نه ده. داحتیاج لپاره دي بله مناسبه لاره غوره کړي.خپله ناخوښي دي په بله توګه ښکاره کړي.توره پټی ترل اوبیا لمونځ کول هم له نورو سره مشابهت دي .

(فتاوی رحیمیه ٣۵٧-٢).

**مسئله** :چیرې چې داجازې اړتیا معلومیږي ، هلته پرته له اجازې داختر لمونځ کول مکروه دي خو که په کومه ځمکه یي مالك داسې ښکاره کیده چې خوشحاله کیږي یا نه خفه کیږي هلته پرته له اجازې هم کیدلای شي .

(فتاوی رحیمیه ٣۵٧-٢ ).

## دعیدگاه په ځمکه مدرسه جوړول

پوښتنه : دعیدگاه ځمکه زیاته ده آیا هلته مدرسه جوړیدلای شی ؟

ځواب : که هغه ځمکه دعیدگاه وي اودعیدگاه ورته اړتیا نه وي.مدرسه دي وربانديجوړه شي خومناسبه کرایه دي عیدگاه ته ورکوی . ځمکه به دعیدگاه او وداني به دمدرسی وي.

(فتاوی محمودیه ۵۴-۱۴ احسن الفتاوی ۴۳۳-۲).

مسئله :دمسجدلپاره په وقف شویو پیسو عیدگاه اودعیدگاه لپاره په وقف شویو پیسو مسجد جوړول جائز نه دي. دعیدگاه اومسجد پیسی پور ورکول جواز نلری ځکه هغه امانت دي.

(فتاوی محمودیه ۱۳۹-۱۰).

## په زړه عیدگاه مدرسه جوړول

پوښتنه : دنوی عیدگاه ترجوړولو وروسته که زړه عیدگاه بالکل ورانه شوه آیا هغه وړیا یاپه بیه مدرسی ته ورکول کیدلای شی ؟

ځواب : په دي کښی اختلاف دي چی عیدگاه دمسجد حکم لری او که نه دضرورت په بنا دوهمه خبره مناسب ده اوله مسجد څخه ... ته نور وقفونه که معطله پاته کیږی دقاضی په ... لول له تحقیق څخه داسی ښکاری ... وخت مدرسه جوړیدلا... دښار ترڅنګ ځم... دقاضی په... دلول به اتفاق ک... یوی ډلی په

(احسن الفتاوی ۴۲۱-۲).



مسئله :په عیدگاه کښی دوهم جماعت مکروه دي. که له چاڅخه داختر لمونځ پاته شو ،هغوی دي هغه مسجد ته لاړ شیاوادا دي کړی چی هلته داختر لمونځ شوی نه وي

## په عیدگاه کښی دامام لپاره چنده ټولول

داختر په ورځ دامام لپاره چنده ورکول صحیح کار دي. اوداکار په عیدگاه کښی هم جواز لری خو دخطبی په وخت کښی دي نه ټولوی څوهغه اخلال نشی ځکه دخطبی اوریدل واجب دي. په مدرسه کښی دمدرسی یابل دینی ضرورت لپاره مرسته غوښتل صحیح دي خوچی لمونځ کوونکو ته تشویش پیدا نشی .دهغوی لحاظ ساتل ضروري دي اوله شور او شر څخه ځان ساتل لازم دي.

(فتاوی محمودیه ۵۲۸-۱۲ فتاوی رحیمیه ۸۸-۵).

مسئله :دخطبی په دوران کښی خلگ خطیب ته پیسی ورکوی خلگ ولاړ وي هغه ټولوی ، دخطبی په دوران کښی داکار جواز نلری ، په ادب سره کښیناستل او خطبه اوریدل لازم دي.

(فتاوی محمودیه ۵۳۱-۱۲).

## دعیدگاه ونې په مسجد کښی صرف کول

مسئله :کوم باغ چی دعیدگاه لپاره وقف شوی وي. دهغه ونی دي نه وهلی کیږی خوکه کومه ونه وچه وه ، هغه دي ووهله شی اودعیدگاه په ودانی دي واچوله شی یا خه شی تری جوړ شی. که عیدگاه ورته اړتیا نه درلوده اونه ورته بیااړتیا محسوس کیدله . بیا دي دمسجد ودانی ته ورکړله شی .خومره اړتیا چی وي هغه دي په چنده پوره کړای شی.

(فتاوی محمودیه ۲۴۷-۱۵).

(وقف کوونکی که کوم شی دځه لپاره وقف کړی وو ، هلته دي صرف شي.)

(محمدرفعت قاسمی).

## په عیدگاه کښې دلمونځ کوونکو لپاره انتظار کول

۱ : داختر دلمانځه وخت هغه دي چې دسهار ترلمانځه وروسته خلگ په مسنونه طریقه تیاری ونیسی اوعیدگاه ته ورسیږي.

۲ : که دنورو خلگو درارسیدو هیله وه نو امام اوحاضرین دي بیړه نه کوی.ترمعلوم وخت دي هم زیات ۷-۶ دقیقی انتظار وباسي.

حاضرینو ته په داسی موقع څه صبر په کار دي. امام ته مشوره ورکولای شی خودلمانځه دپیل کولو ټینګار دي وربانډی نه کوی. امام دي هم دخلگو دستونزی خیال وساتی .ځوك چې وروسته راځی مراعات دي وکړی اوپه قرائت اوخطبه کښې ددي انتظار په بدل کښې لنډون مراعات کړی. په کال کښې همدا دوه ورځی دي چې لمونځ نه کوونکی خلګ هم لمانځه ته راځی. ناروغان اوکمزوری هم پکښې وي .که لمونځ ورځه تیرشي له ډیرو برکتونو څخه به بې برخې وي نو څه انتظار دي ورته وکړی. ځوځوك چې په ناوخته راتلو عادی دي ، هغوی دحاضری اودخپل لمانځه په فکر کښې نه وي .دداسی غافل ، کاهل اوسستو خلگو انتظار کول دهغوی عادت زیاتول دي.

(فتاوی رحیمیه ۷۴-۳ ).



## دعیدگاه اړوند مسئلې

**مسئله** :دعیدگاه لپاره دلوری ځانگړتیا نشته . دښاربښې ، کیڼ یابل لوری نه ده ویل شوی. سنت یوازی دادی چې له ښار څخه بهر لاړ شي اوداخترلمونځ ادا کړی . داهم ضرور نه ده چې عیدگاه جوړه شی، هرځای اودښار هر لوری ته که موقع وه اواسانی وه هلته دي عیدگاه جوړه یا داخترونو لمونځونه وشی .

(فتاوی دارالعلوم ۲۳۳-۲۳۰ ج۵ دمشکوة شریف ۱۲۵-۱ په حواله ).

**مسئله** :که دعیدگاه په کوم ځای کښې حرامی پیسی لگیدلی وي هلته لمونځ کول مکروه دي .غوره داده چې په ډګر کښې داخترونو لمونځ وکړی .

(عزیز الفتاوی ۵۷۹-۱ ).

**مسئله** :دعیدگاه ځمکه خرڅیدلای نشی ، وقف ده اودمسجد حکم لری .

(فتاوی دارالعلوم ۲۱۴-۵ درد المحتار کتاب الوقف ۵۰۷-۱ په حواله).

**مسئله** :عیدگاه وقف ده ، تصرف پکښې کیدلای نشی. کور یابل څه پکښې جوړیدلای نشی خوکه دخلگو دهوساینې لپاره یې کومه برخه دمسجد په څیر پټیږی ترڅو له تودوخې او اورښت څخه خوندي وي بیا حرج اومشکل نشته.

(فتاوی دارالعلوم ۲۱۴-۵ ).

**مسئله** :په یوه ښار کښې دوه عیدگاوی یا دوه ځایه لمونځ کول ممانعت نلري .

(فتاوی دارالعلوم ۲۰۸-۵ درد المحتار ۷۸۳-۱ په حواله ).

**مسئله** :داخترونو لمونځونه په مختلفو مسجدونو کښې ادا کیدلای شي. مسئله داده: په کوم ښار گوتی کښې چې دجمعې اواخترونو لمونځونه یو ځای کیدلای شی، نور ځایونه هم جائز دي .خوغوره داده

چې یوځای وکړای شي خو داخترونو لمونځ په صحرا اوله ښار څخه بهر سنت دي. ((لنډه خبره داده که ضرورت وو، ځای تنګ وو، لیرې وو یافساد یا کومه بله وجه وه نو څوځایونه جواز لري.

(محمدرفعت قاسمي).

**مسئله** :که دعیدګاه امام بدعتي وو. بهر دي بل ځای لمونځ وشي.

(فتاوی دارالعلوم ۲۲۹-۵).

**مسئله** :: په مشترکه ځمکه دمالکانو له خوښې پرته عیدګاه جوړول ناجائز ده. په واړه کلي کښې (چیرې چې دجمعې لمونځ نه کیږي) داخترونو لمونځونه کول اوعیدګاه جوړول جواز نلري.

(عزیز الفتاوی ۵۷۹-۱).

**مسئله** :که څوك دنشې په حالت کښې عیدګاه ته راشي اوخلګو ته یې له بدبوئ څخه تکلیف پیښیده شرعا روا ده چې هغه له عیدګاه څخه وباسې.

(عزیز الفتاوی ۳۰۸-۱).

**مسئله** :په عیدګاه کښې دجنازې لمونځ کول جائز دي.

(فتاوی محمودیه ۳۷۵-۲).

**مسئله** :عیدګاه ته په تللو سره داسې تکبیرونه ویل چې یوځل یې یو ووایي بیایې نور په شریکه سره ووایي اوترلمانځه پورې همداسې کول دامکروه دي.

(فتاوی دارالعلوم ۲۱۷-۵).

**مسئله** :په هغه عیدګاه کښې چې قصابانو جوړه کړې وي دنورو لپاره داختر لمونځ پکښې صحیح دي.

(فتاوی دارالعلوم ۲۰۸-۵).



**مسئله** :دمیرمنو تلل مسجد اوعیدګاه ته مکروه دي. اودا ممانعت دصحابه کرامو په زمانه کښې راغلې وو.

(الدرالمختار ۸۳-۱).

په هغووړو کلیو کښې چې دجمعې لمونځ نه کیږي هلته داختر لمونځ تحریمي مکروه دي. ځکه داختر لمونځونو ته ښار شرط دي. اوپه کلیو کښې صحیح نه دي.

(درمختار ۷۸۵-۱).

**مسئله** :که عیدګاه دودانیو په منځ کښې راغله هغه دصحرا حکم نلري.

(فتاوی دارالعلوم ۲۲۴-۵).

**مسئله** :که په هدیره کې عیدګاه وي هلته پکښې لمونځ کول جواز لري.

(فتاوي دارالعلوم ۱۹۵، (۵)

**مسئله** :که په عیدګاه کښې ددوو صفونو په اندازه یا زیاته فاصله وي اقتداء صحیح ده.

(عالمګیری ۲۲-۱)

**مسئله** :داختر دلمونځ ترکولو په هم هغې ورځ تر زوال وروسته دجمعې لمونځ صحیح دي خو غوره داده چې حسب معمول دجمعې لمونځ په جامع مسجد کښې وشي، ځکه عیدګاه ته تلل اوهلته لمونځ کول یوازې داخترونو دلمانځه لپاره یوخاص مستحب دي.

(عزیز الفتاوی ۴۵-۳)

**مسئله** :دجامع مسجد فرش او نور څه عیدګاه ته وړل ښه نه دي.

(عزیز الفتاوی ۵۹۲-۱).

**مسئله** :کوم ځای چې داخترونو دلمونځونو دکولو لپاره وقف دي، کوم ځای چې دعیدګاه په نوم یادیږي هلته تصرف کول، ودانۍ جوړول

مدرسه ، کتابتون یا نور څه جوړول ، لوبی کول ، بدنی روزنه ( ورزش ) کول دخوړلو څښلو مجلس جوړول جائز نه دي .

(عزیز الفتاوی ۷۹۱-۱).

مسئله :پرته له ضرورت څخه یوازی په شخصی ناخوالو بله عیدگا جوړول اسراف او دتفرقی اساس ایښودل دي .

(عزیز الفتاوی ۴۰۸-۲).

مسئله :ښار ، ښارگوټی اوستر کلی چی دښار گوټی په څیر وي علماوورته دجمعی او داخترونو دلمونځونو اجازه ورکړی وي. هلته له ودانیو بهر عیدگاه جوړول ضروري دي خوترڅو دي بهر دلمانځه لپاره یوځای وټاکی. ژر دي عیدگاه جوړه کړی ترڅو هلته په لمونځ کولو دلوی اجر وروگرځي .

( فتاوی رحیمیه ۷۲-۳ ).



رب اوزعنی ان اشکرنعمتک التی انعمت علی وعلی والدی وان اعمل صالحا ترضاه واصلح لی فی ذریتی انی تبت الیک وانی من المسلمین وتقبل منی هذا العمل وجنبنی فیه عن الخطاء والنسیان واجعله ذریعة للفلاح والنجاح فی الدنیا ووسیلة للنجاة في الاخرة .

محمدرفعت قاسمي مدرس دارالعلوم دیوبند

شوال ۱۴۲۱ هـ ج اول جنوری ۲۰۰۱

ع - ریان ، ژباړه

۲۳ ربیع الاخر ۱۴۲۷ ق ماثور ۱۳۸۵ هـ ل .

ددعامحتاج (ابوخالد)